ځکه چې په حدیث شریف کښې راغلي چې د اولادونو څخه ستاسې سبه اولادونه لوړ دي او د بلې خوا ستاسو د غه سلوك د ماشوم په روحي اوجسماني ودې منفي تاثیر کوي او بشپړه وده نه کوي .

کله چې ستاسو ماشوم د (۱۸) اته لسو میاشتو او څلورو کلونو تر منځ عمر ولري او په کورنۍ کښې مود وهم ماشوم وزیږي نو د کورنۍ د ټولو غړو توجه د غه نوي ماشوم ته وي نو د مخکې ماشوم سره رخه او کینه او د ضدیت فکر پیدا کېږي، او ستاسو د هر کار څخه ناخوښه او ناراضه وي ، همیشه رینګن او جنجالي موقف اختیاروي ځکه چې ناڅاپه د کورنۍ د ټولو غړو د توجه څخه محرومېږي .

ماشوم چې د مور او پلار مینه او توجه له لاسه ورکړي نو هڅه کوي چې ځان د ورو کي ماشوم په شان کړي تر څو د لاسه تللې توجه راجلبه کړي .

د یو سالم عقل او فکر خاوند همیشه د پاره فکر کوي او د ماشوم د ناراضۍ سبب لټوي ، او د مشکلاتو په حلولو کښې ورسره مرسته کوي مثلاً ، دفعتاً د ماشوم مزاج خرابېدل ، په لاره نه تلل او د یو شي ردول دغه ټول حرکات د یو ماشوم ځانګړي عوامل لري ، مثلاً ، که چېرې یو ماشوم دفعتاً په لاره نه ځي امکان لري چې ستړی وي یا د اسمت يې نور نه خوښېږي ، د دې امکان هم شته چې څپلۍ يې پښې وهي نو مور او پلار او نورو مشرانو ته په کار دي چې ماشوم ته غوسه و نه کړي او ورسره د زور او زیاتي د استعمال څخه ډډه وکړي .

همدارنګه هغه وخت چې یو ماشوم خوشحاله او په لوبو بوخت وي او سبوونځي ته لا نه وي تللی نو د مور او پلار او نورو مشرانو له خوا باید په لاندې ډول الفاظ ورته استعمال نه شي: یو څو ورځې وروسته به دې سبوونځي شروع شي او هلته به بیا داسې منډې او رامنډې نه شي کولای او سبوونځی دلوبو او ساعت تېرې ځای نه دی هلته باید آرام کښېنې. داسې الفاظ د ماشوم له پاره یو نوع تهدید او سزا ښکاري. کله چې ماشوم سبوونځي ته د تللو شي نو په شروع کښې زیات مشکلات لري د یوې خوا د مور او پلار د مینې او محبت څخه ځان محروم حس کوي او د بلې خوا سبوونکي او د سبوونځي ماحول ټول ورته نوي او نا اشنا وي.

مور او پلار ته ضروري ده چې خپلو ټولو ماشومانو سره یو شان علاقه او مینه ولري، داسې ونه کړي چې د یو ماشوم سره شپه او ورځ مصروف وي او نور ټول له نظره وغورځوي نو ځکه نور ماشومان داسې فکر کوي چې مونږ د مور او پلار نه خوښېږو او روحاً نا ارامه وي.

کله چې تاسو د خپل کوچني ماشوم سره چې د څو ورځو او یا څو میاشتو وي مصروف اوسئ او ستاسې لوئ ماشوم چې د دوه یا درې کلونو عمر لري او غواړي چې ستاسو غېږ کښې کښېني نو څپله غېږ کښې ځای ورکړئ او ورته ووائي چې بچیه! ته هم زمونږ زوئ یا لور یې او دا هم ستا په شان زمونږ زوی یا لور ده تاسو دواړه مونږ ته ګران

یاست ، او تاسې هم ددې ماشوم په شان دغه ډکښېناستو د مینې ډکه مرحله تېره کړې ده.

ځنې وخت داسې کېږي چې سړی دوه ښځې ولري یا یوه ښځه یې مړه شي او بله ښځه وکړي او یا داچې د ښځې مېړه مړشي په دې صورت کې دداسې کورنۍ سرپرست باید دبلې ښځې اولاد ته مساوي او برابره توجه ولري او دهغوئ په خوراك ، جامه او نورو شیانو کښې فرق و نه کړي ځکه چې ماشوم دیو دبل د زیاتو امتیازاتو څخه متأثر کېږي.
کله داسې هم پېښېږي چې یو زده کوونکی د لومړي ټولګی څخه دوهم ټولګی ته بریالی شي نو د دوهم ټولګی ښوونکی یې نه خوښېږي. پلار ته وائي چې د دغه نوي ټولګي ښوونکی مې نه خوښېږي ، پلار یې ورته باید ووائي چې زه ماهم نه خوښېږي مګر دسبق دپاره ښه دی ، کینه او حسد باید ورسره و نه لرو او احترام یې وکړو.

کله کله داسې هم پېښېږي یو ماشوم چې د ړې یا خلور وکلونو په عمر وي په خپل بل کوچني یا مشر ورور خوله ولګوي ، ښه به دا وي چې مور او پلار یې ورته په غوسه نه شي بلکه داسې ورته ووائي : خوله مه لګوه ، ورو کی ماشوم یا ورور خوشه خوړلی نه شي! تا ته خولې لګولو څه ګټه وکړه هیڅ شی هم ستا په لاس رانه غلل
داسې هم پېښېږي چې یو ماشوم دمور شیدې روي نو په دې صورت کښې د مخکښې ماشوم ورسره رخه او کینه پیدا کېږي مګر زیاتره دا مشکل پس له یو څو ورځو حلېږي او ماشوم ورسره

عادي کېږي ، ښه به داوي چې په دې صورت کښې د کور بل مشر سړی یا ښځه ماشوم دځان سره کښېنوي یا یې دباندی دځان سره روان کړي او داسې ورته ووائي چې ته اوس لوی سړی یې اولوی سړی تې نه روي ، داسی هم پېښېږي چې یوماشوم تولدشي سابقه ماشوم ته رخه او کینه ورځي چې زما مور او پلار يې راڅخه ځانته کړه . مور او پلار دې ورته ووائي بچیه ! مونږ ستا مور او پلار هم یو او دده مور او پلار هم یو او تاسو دواړو سره مینه لرو.

په افغاني اجتماع کښې د ډېرداسې هم کېږي چې څلور کلن یا پنځه کلن ماشوم ته يې موریو کلن ماشوم ورکړی وي چې پر دې باندی پام کوه اولوبې ورسره کوه که چېرې داکار ماشوم په خپله خوښه کوي ډېر ښه دی اوکه په خپله خوښه يې نه کوي نو مه يې موظف کوئ ځکه چې ماشوم،ما شوم دی اودلو یا نو وظیفه مه ورکوئ .

## یوماشوم چې خبری نه شي کولی په کومه ژبه ورسره خبری وکړو ؟

په یاد ولرئ کله چې ماشوم دمور په کېډه وي نو دخپل مور او پلار آواز سره اشنا وي دمور قهر غوسه او تکلیفي شرونډ په ماشوم باندی مخکښې له تولدڅخه هم تاثیرکوي نوځکه حامله مور ښې او ویټا مین لرونکی غذاته ډېر ضرورت لري او باید ډېرو سختو جسماني کارونو څخه وشرغورل شي.

اوس دا پوښتنه پیدا کېږي چې د نوی ماشوم سره په کومه ژبه خبرې وشي او په یو خاص ځای کښې چې را دیو ، موږ یك او شور ماشوم نه وي وساتل شي او که نه ؟

په تجربو سره ثابته شوېده چې ماشوم د زېږېدو څخه د مخه د مور د آواز سره اشناوي نو ښه به داوي چې د زېږېدو څخه وروسته سمدلاسه؛ مور خپل ماشوم په غېږ کښې ونیسي او ورته ووائي ښه دی چې راغلې ، موږ ستا انتظار کاوه ، اوس خدای جل جلاله سره یو ځای کړو. ماشوم د خپلې مور آواز پېژني ، تسکین او ډاډ ورته پیدا کېږي داهم په تجربو سره رسېدلی ده چې د مور د غه لنډې جملې ماشوم ته ور وسته په ژوندکې یا دې وی او په همدې خبرو سره ئې د نړۍ سره تماس شروع کېږي . ډېره ښه به داوي چې لومړنۍ جملې ماشوم ته ډېرې نرمې ، لنډې ، ښایسته او صفا استعمال شي ترڅو چې د ده ژوند په ښو الفاظو شروع شي . باید نور خلك ماشوم ته د ژوند په لومړیو ساعتو کښې بې ځایه جملې استعمال نه کړي او د ماشوم ژوند بې اهمیته ونه ګڼو .

ښه به داوي چې ماشوم د کور په هغه ځای کښې وده وکړي اګر که هلته غال مغال او لوړ آواز و نه هم وي ځکه چې هره ورځ خوسرې ماشوم بل ځای ته نه شي وړای .

کله چې د مېړه او ښځې تر منځ جنګ او دعوی راځي ښه به داوي چې په آرامه او صلحې سره ئې د خبرو د لارې حل کړي ، او که چېرې

حل نه شي نو ښه به داوي چې د ماشوم مور د ماشوما نو د مخه
شکنجه او تهدید نه شي ځکه چې ماشومان په مور زیات حفه کیږي
او ددې واقعې څخه زیات متاثر کیږي

## د ماشوم تغذیه

ښه او بهترینه غذا د ماشوم د پاره د مور شیدې دي او
هیڅ وخت نورې شیدې د مور د شیدو سره برابرې نه وي.

خدای جل جلاله په قرانکریم کښې فرمائي:

"چې مورګانې باید بشپړه دوه کاله خپل اولادته تی ورکړي".

د مور موجودیت خصوصاً د ماشوم په لومړیو دوو کلونو کښې –
ډېر مهم دی. هغه ماشومان چې د خپل عمر په لومړیو میاشتو او کلونو
کښې مور ونه لري. په وروستنی ژوند کښې ئې د ډېر تاثیر لري.

څېړنو ښوولی ده چې هغه کسان چې په انحرافاتو اخته کیږي ډېر
شمېر ئې هغه کسان دي چې د مورتی ئې نه وي رودلی.

## د ماشوم د خبرو کولو انکشاف

د لومړیو (۲-۶) کلونو په موده کښې ماشوم ته زیاتې
پوښتنې پیدا کیږی مثلاً: کاکا، ماما، ترور، لغات او کلمات نه پیژني
ګلان، بوټی، حیوانات، د کرنې حاصلات او د محیط نورو نومونو او
اصطلاحاتو سره اشنا نه وي نو ځکه هغه ټول اصطلاحات او
لغات باید ماشوم ته د ژوند په لومړیو کلونو کې تشریح شي.

ماشوم ډېرې پوښتنې کوي چې ورته ئې تشریح باید وشي. د ماشوم

پوښتنوته ځواب نیول اوصحیح ځواب ورکول دماشوم دخبرو په انکشاف او ذهن کښې سترمثبت تحول راوړي.

یوماشوم چې نوي ښوونځي اومدرسې ته ځي ډېرمشکل پرې تمامیږي مګرپس له څوورځو ورسره عادي کیږي خې وخت داسې امکان هم لري چې پس له ډېر وخته هم زده کوونکی په خپله خوښه ښوونځي اومدرسې ته ولاړنه شي او د ښوونځي د تللو په وخت کښې ژاړي، امکان لري چې ښوونکی یې وهي، یا بل چا ښوونځي ورته ډېرمشکل ځای معرفي کړی وي.

ماشوم په خپله مورنۍ ژبه ژر او ښه زده کړه کولای شي. که چیرې په لومړي ټولګي کښې یې تعلیمات په مورنۍ ژبه نه وي نوماشوم د مشکلاتو سره مخامخ کیدای شي.

## دافغاني ماشومانو خصوصیات

څرنګه چې مخکښې له (١٩٧٨)م کال څخه دافغانستان اکثریت وګړي په اطرافي سیموکښې اوسیدل نو ځکه یا ترماشومانو په اطرافوکښې ژوندکاوه. دوی په کرنه اومالدارۍ بوخت وو او ډیر لږ تعداد یې ښوونځي ته تلل، یا تره ماشومان به سهار وختي راپاڅیدل او مسجدته به د دیني علوموزده کړې دپاره تلل ورو سته د دیني زده کړې څخه به کورته راتلل او په کور کښې به یې د چایو، شیدو، لوښو او نورو شیانو سره د ورځې خوړله.

د چای چښلو وروسته به انجونو د کور په کارونوکښې د خپلې مور سره مرسته کوله او هلکانو به د مالدارۍ او کرنې په چارو

کښې د خپل پلار یا ورور سره مرسته کوله.

هغه ماشومان چې د سهار له خوا به مدرسې یا ښوونځي ته تلل -
وروسته له غرمې څخه به د کرنې او مالدارۍ په چارو بوخت وو.
همدارنګه په درې میاشتني عمومي رخصتۍ کښې به یې هم د کرنې
په چارو کښې د مور او پلار سره کومک کاوه. په اطرافو کښې
د انجونو د پاره د زده کړې دومره زمینه نه وه برابره. فقط په ورو [ستیو]
کلونو کښې په اطرافي ځینو سیمو او ښارو کښې د انجونو لومړني او
منځني ښوونځي تأسیس شوي وو او د ځینو لویو ښارو په مرکزونو کې
لیسې هم تأسیس شوې وې. په وړکالۍ وخت کښې به هلکانو د کور
څخه د باندې لوبې کولې. په افغاني جامعه کښې دومره زیاتې لوبې د
ماشومانو شته چې د نړۍ په هیڅ هیواد کښې په دې پیمانه نه لیدل
کیږي، مګر متأسفانه چې د مهاجرو په کمپونو کښې د دوی دغه
عنعنوي لوبې د زوال په لور رواني دي او تقریبًا له منځه
تللې دي. دا ځکه چې د کمپونو په چاپیریال کښې د ماشومانو له پاره
د لوبو ځای نه شته او د مختلفو قومونو ماشومان یو د بل په څنګ
کښې اوسیږي. د ډیر زیات افغاني ماشومان په پاکستان او ایران
کښې زیږیدلي دي او د خپل ملک د دود او دستور څخه ناخبره
دي.

وړو انجونو به مخکښې د ۱۹۷۸ م کال څخه د کور څخه د باندې
د کاونډ نورو وړو انجونو سره ګوډۍ لوبولې مګر فعلًا په

خپل کوړکي کله نا کله نا نځکی او ګوډ یا ني لوبوي.

# د افغاني ماشومانو ژوند

افغاني ماشومانو اجتماعي ژوند دړلود او د لوبو په وخت کښې به په دوه او یا څو ډلو وویشل شول او د هرې ډلې مشر به وټاکل شو. د لوبو په وخت کښې به یې د مشر خبرو ته غوږ نیوه.

د شپې له خوابه یې پلار، نیکه، مور او یا د کوربل مشرورته افسانې او قصې اورولې او ماشومانو به ترې لذت اوخوند اخیست.

دغه کلتور د افغانانو هم په کمپونو کښې د سقوط سره مواجه دی ځکه چې د کور مشران زیاتره د جهاد او مهاجرت په مسئلو بوخت دي او نورو شیانو ته موقع او زمینه مساعده نه ده. مهاجراو په داخل کښې زیاتره ماشومان د انقلاب تر تاثیر لاندې راغلي او د صلحې او امنیت د ژوند څخه ناخبره دي. په مهاجرت کښې هم ځینې ماشومان مختلفو تعلیمي موسسو ته د زده کړې د پاره ځي او ځنې نور یې د کور په چارو بوخت دي او د خوراکي شیانو پیرودل او پلورل هم کوي.

په افغاني ټولنه کښې زیاتره د ماشوم د زیږېدو نیټه پلار او مورته معلومه نه وي ځکه چې دوی یې یاداشت د ځان سره نه لیکي.

د ټور د کودتا نه څو کاله مخکښې د افغاني ماشومانو په هکله یوه مطالعه شوی وه او لاندې مشخصات یې ذکر کړي وو.

۱- د حفظ الصحی ناوړه شرایط.

۲- د سنوونې او روزنې او په تېره بیا د لومړنیو تعلیماتو څخه محرومېدل.

۳- لومړني تعلیمات په مورنۍ ژبه نه دي (په پوښتو سیمو کښې).

۴- د ماشومانو له پاره د قصیو او افسانو نشتوالی.

۵- د اقتصادي فقر په سبب د جسمي کارونو اجراء کول.

۶- جسمي او روحي جزا ورکول.

۷- د ماشومانو د پاره د سالمو تفریحاتو نشتوالی.

۸- سوء تغذیه.

۹- د ماشومانو د پالنې او حمایې له پاره د اجتماعي مسؤلیت نشتوالی. همدارنګه د مور او ماشوم د حمایې نشتوالی.

# د پلار په نه موجودیت کښې د یو ماشوم ژوند

په عادي صورت کښې یو ماشوم د مور خوی، بوی او عادات د خپل پلار په نسبت ډېر سبنه او ښر اخلي ځکه چې ماشوم د مور سره د ژوند په لومړیو کلونو کښې همېشه یو ځای وي. که چېرې یو ماشوم د پلار خبرو ته غوږ نه نیسي نو پلار ته باید مأیوس نه شي ځکه چې د ماشوم خواص د پلار سره ډېر فرق لري او زیات وخت ئې د مور سره تېر کړی دی.

کله چې پلار سفر ته ځي باید خپل ماشوم ته ووائې چې زه سفر

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ہ

# لومړی فصل

## تعلیم ورکول او د ښوونکي وظیفه په غاړه اخستل:

د پرځوانان شته چه زده کړه يې کړې ده او د نه ده کړې په وخت کښې يې شپه او ورځ زيار ايستلی چه ښې او اعلی نمرې واخلي. دا د ول زده کوونکو دخپلې زده کړې په دوران کښې د دې چل یا د کړی چه دخپل درس موضوع او مضمون د ټولګي استاذيا زده کوونکو ته تشريح کړي، دا د دې معنی نه لري چې يو ځوان چه نوی د دولسم ټولګي یا پوهنځي څخه د اعلی نمرو په اخستلو سره بريالی او فارغ شوی دی نو هرو مرو باید ښه او برجسته ښوونکی هم وي.

### ښه ښوونکي باید لاندې اوصاف ولري :

کوم مضمون چه درس ورکوي ورباندې وپوهيږي او د درس ورکولو تجربه يې ولري.

**اصول تدريس او ميتود:** د درس ورکولو د پاره پوهانو خاصې درسي طريقې او ميتودونه ښودلی دي چې د هغې پرپوهيدلو او لوستلو سره ښوونکي کولی شي چې څه ناڅه خپل نواقص او مشکلات حل کړي. دماشومانو پرروحياتو باید يو ښوونکی پوه وي. او که د ماشومانو روحيات يې نه وي لوستلی نو د صحيح ښوونکي توقع ترې نه کيږي. روحيات د انسان د ژوند ټول اړخونه مطالعه کوي. همدارنګه د يو ماشوم

ته په خیر سره ځم او دومره ورځې به په کور کې نه یم یا ئې خپله مور ورته وواېئ چې پلار دې پس له دومره ورځو انشاء الله بېرته کور ته راځي.

د پرمختللو هېوادونو یعنې تعلیم یافته کسانو د هر کم وخت په خپل کور کښې د بچیانو سره تېروي د دا سې کسانو د اولادونو او ماشومانو تربیه همیشه د نور و په واسطه کېږي چې پاکله د ده د اولاد په تربیه کښې ډېره اغېزه لري.

کله چې پلار د سفر څخه راستون کېږي باید خپل ماشوم ته د خپل سفر په برخه کښې پوره معلومات ورکړي او د لچسپې نقطې ئې ورته بیان کړي، که ماشوم پرې پوه هم نه شي خو قناعت ئې پرې حاصلېږي.

مور باید د پلار په غیاب کښې ماشوم ته داسې ونه وائي چې که چېرې د اکار دې وکړ نو پلار ته به دې ووایم یا د اکار دې ولې داسې کړي دی؟ نو په دې پلار ته ووایم. په دې خبرو چې تا سو خپل ماشوم تهدیدوئ نو ځکه د وېرې او ترس سره مخ وي او د پلار د راتګ په وخت کښې دومره خوشحالي نه حس کوي.

د ماشوم په تربیه کښې مور او پلار باید د نظر یو والی ولري. په افغاني ټولنه کښې اکثراً داسې پېښېږي چې مور خپل ماشوم ته وائي چې دا کار کوه خو پلار کوه چې پلار دې د ر پا نه خبر نه شي.



# دماشوم سره صحیح حرکات او سلوك

یوه تجربه لزونکی مور وایي چې: زما دماشوم د زېږېدو د ورځې وروسته ماته دا ثابته شوې ده چې ماشوم ته غوږ نیول او د هغه حرکاتو ته ځان پوهول او خبرې ورسره کول دماشوم په مثبت انکشاف کښې ډېر مهم رول لوبوي. خو سره له دې په عملي ژوند کښې داسې وختونه راځي چې مور د ماشوم په مقابل کښې کله کله په خپل ځان کنترول او اداره نه لري او چو صبله د لاسه ورکوي نو ځکه مور غواړي چې خپل اولاد ووهي او تهدید یې کړي مور کاني باید وپوهېږي چې دا کار د دوئ د اولاد د سالمې او صحیح تربیې ته ضرر رسوي.

په داسې موقع کښې چې مور په قهر او په غوسه وي سنه دا ده چې خپل ماشوم ته و وائي چې زه په قهر یم فکر مې خراب دی، ومولید چې ما فکر خراب دی او لاد یې په دې خبرو پوهېږي کله چې د مور او پلار نه سهوه وشوه او خپل اولاد یې ووا هه وروسته دوهلو څخه دې نه مو چې کوي خبرې دې ورسره وکړي او داسې دې ورته وائي چې حوصله مې نه درلوده او کله کله حوصله نه لرم نو ځکه بخښنه او معافي غواړم.

وایي چې: یوې مور یو زوئ درلود کله چې د څلورو کلونو په عمر وو او کوم خراب کار به یې وکړ مور به یې ورته په قهر شوه نو ماشوم به د ځان سره په خندا شروع وکړه او مور به یې د ده په

خندا نوره هم په غوسه شوه. یوه ورځ یې مور په آرام د زوی سره ناسته وه او خبرې یې کولې د خپل زوی خخه یې پوښتنه وکړه: چې زویه! کله چې زه تا ته په قهریم ته ولې خاندې؟

ماشوم داسې ځواب ورکړ: مورجانې! کله چې ته ما ته په قهر شې کاشکې چې په دې وخت کښې دې خپل مخ په شیشه کښې لیدلی وی چې ته څنګه ښکارې، تا به ورته تر ټولو اول خندلی وی، مور یې په خندا شوه او کله چې به بیا په قهر شوه نو خپله غوسه به یې راکمه کړه او خپل زوی ته به یې وویل: چې شیشه راوړه چې زما مخ په کښې دواړه وګورو او په دې ترتیب به دواړو په خندا شروع وکړه.

# یوه کورنۍ چې دېر ماشومان لري

کله کله داسې هم پېښېږي چې ماشومان یو بل پسې ډېر ژر زیږیږي او هغه ځوان ماشوم چې د دریو او څلورو کلونو په عمر وي مشکل او ځنجال جوړوي او غالبًا داسې ګمان کوي چې مور او پلار مې ولې دومره زیاته پاملرنه په دغه نوي زیږېدلي ماشوم او په نورو کشرانو کوي یعنې رخه او کینه ورته پیدا کېږي. مور او پلار ته په کار ده چې دغه ماشوم سره خبرې وکړي او په مناسب وخت کښې د ده سره مینه او محبت وساتي.



# دماشوم پاکوالی

اکثره ماشومان تر دوو کلونو پورې پاك نه وي ، په کټ او بستره کښې تشې او دکې متیازې کوي مګر وروسته له دوو کلونو څخه زیاتره ماشومان بیا دا کار نه کوي ، خپل ځان کنترولوي او پرخاك اندان کښیناستی شي . هغه خاك اندان چې دکمو د سستم ونه لري او ماشومان يې استعمالوي ، د استعمال په وخت کښې مور او یا بل مشر دکور باید حاضر وي ځکه چې د ماشوم د ولیدو خطر په تتې کښې شته دی . ښه به دا وي چې ماشوم ته یوه کټوره په خاك انداز کښې کښېږدی او په هغې کښې خپلې تشې او دکې متیازې وکړي ، دې کار ته د ۳ - ۴ کلونو پورې دوام ورکړئ ، او بیا ماشومان باید د هر حاجت د رفع کولو نه وروسته د لاسونو د وینځلو سره عادت کړي . که چیرې ماشوم ته د ژمي په موسم کښې د حمام او وینځلو شرایط مساعد نه وي باید یوه پاکه وینځل شوې ټوټه په ترمو او بو کښې لمده شي او د ماشوم بدن پرې څو ځلې د کمیس لاندې پاك شي .

# دماشوم دخوب ځای

که چیرې ماشوم د خوب او بیدېدو په ځای کښې د نورو ماشومانو سره یو ځای بیده شي دا کار مثبت دی ، په جسمي او روحي تربیه کښې يې کوم منفي تاثیر نه لري .

دوه ماشومان که په یو کټ او بسترې کښې بیدېږي ، ښه به دا وي چې جدا کټ او بسترې ولري ځکه چې یو د بل مزاحم کېږي او ماشومان

آرام خوب نه شي کولی. دوئ ته دخوب له پاره ارامه بستره او مناسب بالښت باید اماده شي او دخوب په وخت کښې ئې دملروړانګی او یا دبریښنا رڼا مستقیمًا د ماشوم په سترګو نه وي.

# خوب لیدل او په خوب کې ویریدل

اکثره ماشومان چې اوه کلن شي په خوب کښې ویریږي او کله کله خبرې کوي چې دا کار نورمال او عادي دی.

**ماشوم د مرګ او مړکیدو په برخه کښې پوښتنې کوي ؟**

ماشوم د ۴ - ۷ کلونو عمر ترمنځ د مرګ په باره کښې شاید د مور او پلار څخه پوښتنې وکړي . مثلًا: ووائي چې هغه پلانی سړی یا هلك ولی مړ شو ؟ مور او پلار دې ورته ووائي چې : هرڅوك چې پیدا شوا و وخت ئې پوره شو نو خدای جل جلاله ئې مړ کوي مګر هیڅ چا ته هم خپله د مرګ نیټه معلومه نه ده .کله چې څوك مړ شي بیا دوباره په قبر کښې راښ وندی کیږي . ځینی خلك په دې دنیا ډېر خوشحاله دي او ځینی خلك په هغې دنیا کښې ډېر خوشحاله وي . دا د خدای جل جلاله په قدرت کښې دي چې کله سړې مړ کوي ؟ یعنی کله چې وخت او عُمر ئې پوره شي بیا سړی مړ کیږي . غوا ، غوائې ، پسه هم مړه کیږي او خلك ئې د غوښو دپاره حلا لوي . دوئ دومره مهم نه دی څکه چې خبرې نه شي کولی. مرګ او ښ وند دواړه د ټولو ساکښواو انسان سره لازم او ملزوم دی او هر ژوندی موجود په تاکلي وخت مري.

**روغ ماشوم :** ښه خوراك او څښاك کوي ، خندا او پوره

خوب کوی، عقلاً او جسماً روغ وي.

**مور او پلار:** مور او پلار باید دوړو ماشومانو سره لوبې او ټوکې وکړي او کومې پوښتنې چې ماشومان لري په ښه ډول یې ورته ځواب او تشریح کړي، ښه خوراک، کالي او د اوسېدو ځای ورته برابر کړي او هم مدرسې او ښوونځي ته یې واستوي.

## د ماشومانو سره ټوکې کول

انحضرت (ص) د ماشومانو سره ټوکې کولې: حضرت انس (رض) وايي: چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به له موږ (خلکو) سره خلط او یو ځای و، او ځان ته ژوندی نه کاوه تر دې چې زما کشر ورور عمیر نومی سره به یې داسې ټوکه کوله: ای عمیره! ستا چنچنه څه شوله؟

عمیر سره یو چنچنه وه او پرهغې یې خپل زړه خوشحاله ساته هغه ترې مړه شوه.

## ماشومان ښکلول

نبي علیه الصلوة والسلام ته یو ماشوم راوستی شو چې هغه یې ښکل کړلو او ویې فرمایل:

دا ماشومان سړې بخیل او بزدل جوړوي او دا د الله جل جلاله د باغ ګلونه دي. (مشکوة)

زمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم ماشومان د ګلانو سره تشبیه کړي دي. څرنګه چې ګلان د خاصو شرطونو لاندې وده کوي، د طوفانونو او واقعاتو په مقابل کښې ډېر نازک دي او ژر رژېږي، هوا ماشومان

هم دګل په شان نازك او ښایسته دي چې ساتنه او حفاظت يې ډېر ډېروند او مشکل کار دی.

د عبدالله ابن عباس (رض) څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: چې ای خلکو تاسو د خپل اولاد سره د رحم او کرم سلوك وکړئ او هغوئ ته ښه تعلیم او تربیت ورکړئ. څوك چې په چا ترحم ونه کړي په هغه به ترحم و نه شي. (الحدیث)

همدارنګه اولاد به دمور او پلار احترام ساتي او دهغوئ سره به جنګ نه کوي. خدای جل جلاله خوځایه په قرانکریم کښې د مور او پلار حقوق پر اولاد فرض کړي دي.

# د ماشومانو سره مینه

د بی بی عایشې (رض) څخه روایت دی چې: یو اعرابي (بانده چي) انحضرت صلی الله علیه وسلم ته راغی. په دغه وخت کښې حضور صلی الله علیه وسلم د یو ماشوم سره مینه کوله. بانده چي ورته وویل چې تاسو (خلك) د خپلو ماشومانو سره مینه کوي او مونږ يې نه کوو، نو انحضرت صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: زه څه وکړم چې الله جل جلاله د رحم او کرم جذبه ستاسې د زړونو څخه ایستلې ده. (بخاري، مسلم)

# د ماشوم بین المللی حقوق

یو ماشوم لاندینی بین المللی حقوق لري:

۱- یو ماشوم حق لري چې سالم بدني او عقلي انکشاف وکړي.

۲- مساوي او برابر حقوق لري بېله قومي ، مذهبي د هلك او جلۍ په نظر کښې نيولو سره.

۳- حق لرى چې يو نوم او يو دولت (ملك) ولري.

۴- حق لري چې کافي غذا او خوړې، کوړ و لري او تداوي ئې وشي.

۵- که معيوب وي خاص پاملرنه ئې تربيې ته وشي.

۶- ماشوم سره مينه لرل ، پوهېدل ، ضروري شيان ورته برابرول او توافق کول.

۷- د ېر عاجل کومکونه او مرستې د ماشومانو د افاتو او امراضو په وخت کښې.

۸- د ماشومانو ساتل او حمايه کول د وهلو او تکولو څخه او هم بايد بده استفاده ورڅخه ونه شي يعنې د اخلاقي فساد او ودرندو جسماني کارونو کار څنې وانخلي.

۹- ماشوم حق لري چې خوك ئې تعقيب او سرزنش نه کړي د خپلې عقيدې مطابق د وروړلو او صلح ژوند وکړي.



# دوهم فصل

# تعلیمي روحیات

## لومړی برخه

### د ښوونکي او شاګردانو ترمنځ روابط

په ورځنی ژوند کښې د بېلا بېلو کسبونو خاوندان یو د بل لارښود او ښوونکي ګڼل کېدای شي . په کورکښې مور او پلار د خپلو اولادونو او د کورنۍ مشران د کشرانو د پاره ښوونکي بلل کېږي . دغه راز یو سپورتلو او ورزشکار چې نورو ورزشکارانو ته لارښوونه کوي نو دهغوئ د پاره يې ښوونکي بولو. سربېره پردي د لیک او لوست ماهران چې خپلو شاګردانو ته درس ورکوي او شاګردان ترې نوي او تازه ـ شیان زده کوي ښوونکي بلل کېږي.

ښوونه د انساني ټولنې په بېلا بېلو برخوکښې تل روانه وي او د حضرت آدم علیه السلام نه تردې دمه پورې چې هرڅوک په انساني ټولنه کښې او سېدلی دي تر زده کړې وروسته په خپله يې هم په نیمګړې یا بشپړه ډول د زده کړې د پراوتر وهلو وروسته د نورو د ښوونې وظیفه په غاړه اخستې ده.

که د انساني پرګنو د زده کړې او ښوونې لړۍ په خير سره راوسپړو او قدم په قدم يې وڅېړو نو هلته به ورسېږو چې د کائناتو خالق د (اقرأ ...... مالم يعلم) په نزول سره خپل استاذی ته ښوونه پيل کړه او استازي يې د نورو انسانانو د لارښوونې لړۍ ترڅنګ وځي پورې راورسوله . زموږ پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايي : بېشکه چې زه تاسو ته ښوونکي رالېږل شوی يم . څوکه د انسان لرغونی تاريخ نور هم پسې وپلټو نو د (وعلم آدم الاسماء کلها) څخه به هم ځرګنده شي چې د انسانانو لومړي پلار (آدم عليه السلام) ته هم ښوونه شوې او حضرت آدم عليه السلام په خپل وار سره د ښوونکي د دنده سرته رسولې ده .

همدارنګه خدای جل جلاله د علم په برخه کښې فرمايي :

ورکوی علم هرچا ته چې وغواړي او هرچا ته چې ورکول شو علم ، په تحقيق سره ډېره ښېګڼه ورکول شوه .

له دغه لنډ بحث څخه په ډاګه څرګندېږي چې ښوونه څنګه وظيفه ده ؟ د ښوونې مفردات څه ډول او ښوونه له کومه ځايه څخه پيل شوی ؟ ښوونکي کوم مقام لري ؟ او ښوونه بايد څه ډول وشي ؟

د لته موږ د ښوونکي او شاګردانو ترمنځ روابط څېړو او ددې څېړنې څخه کره هدف دادی چې د ښوونکي او زده کوونکو ترمنځ د پېښېدونکو ستونزو ، شخړو او پېچلو مسئلو د حل لار پيدا او هواره شي ، ترڅو ښوونکی فرصت پيدا کړي چې خپله پوهه او علمي معلومات زده کوونکو ته په ښه طريقه سره ور انتقال کړي ، له دې کبله

وده، خواص، عادات او د روزنې طریقې بیانوي، برسېره پردې روحیات د ښوونکي او زده کوونکو ترمنځ روابط څېړي او د دوی ترمنځ د مشکلاتو او جنجالونو د حل لارې چارې بیانوي.

نو څکه د لومړنیو ښوونځیو د ښوونکو د پاره د روحیاتو د علم زده کړه ډېره ضروري ده. هغه ښوونکی چې دې زده کړې په وخت کښې ښې او اعلی نمرې لري او د ماشوم روحیات څې نه وي لوستلی، دوی د تدریس په چارو کښې دومره بریالي نه دي. برعکس هغه ښوونکي چې د زده کړې په دوران کښې ښې او اعلی نمرې نه لري مګر د ماشومانو پر روحیاتو خبر وي، داسې ښوونکی کېدای شي چې د تدریس په وخت کښې زیات بریالی وي.

# روحیات

روحیات یو ښوونکي ته د زده کړې څلور اساسي اصول ښائي چې په لاندې ډول دي.

۱- ولې زده کوونکو ته درس ورکوو؟

۲- څنګه درس ورکولی شئ؟

۳- څه شی درس ورکول په کار دي؟

۴- کله درس ورکول په کار دي؟

## اول: ولې زده کوونکو ته درس ورکوو؟

زده کړه پر مونږ فرض ده او د اسلام په مقدس دین کښې لوړ مقام لري خدای (ج) فرمائي:

"خدای تعالی (ج) په تاسو کښې د مؤمنانو او هغه چا درجې لوړې چې علم ورکول شوی وي".

په احادیثو مبارکو کښې راغلی دی چې دوه ډلې اصحاب کرام (رض) په

هغه کوچې هغه لارې چارې ومومو دکومو په واسطه چې د ښوونکي د تدریس په وخت کښې د ښوونکي او زده کوونکي ترمنځ په علمي او اصولي توګه د خوشحالۍ او ښه سلوک فضا جوړېدلای شي.

که څه هم د ښوونکي او زده کوونکو ترمنځ په روابطو بحث کول یوه خاصه او ځانګړې موضوع ده چې د تدریس او زده کړې په وخت په کښې د انساني تجربو څخه استفاده کېږي مګر په عمومي ډول هم دا تجربې د انساني ژوند په ټولو اړخونو او بېلا بیلو کسبو نو کښې په کار وړل کېږي او ګټه ترې اخستل کېدای شي.

مشران او تجربه کارکسان په عمومي توګه ددې وړتیالري چې په ډېرې خوښۍ او ښه سلوک د ځوان نسل روزنه وکړي او درس ورکړي او ځوانان ددې جوګه کړي چې معلوماتو نه یې په کارواچوي او په ژوند کې ترې ګټه واخلي.

دا د هر ښوونکي هیله او غوښتنه ده چې خپل شاګردان د درس په وخت کښې سمې لارې ته راوبولي او په کړوړو لاروې له تګ څخه و ژغوري خو ډېر ځلې داسې پېښېږي چې زده کوونکي د تعلیم او تربیې څخه د ګټې اخستو او په مثبت اړخ کښې په کار اچولو پرځای په انحرافي او کږو لارو روانېږي. مثلاً یو شاګرد د خپل ښوونکي او یا مور او پلار په وړاندې په بې ځایه مقاومت شروع کوي، فعال او متحرک نه وي، تل بې زړه او ډارن (یرندوکی) وي، بې له کوم سببه سترې ستومانه ښکاري، تل عداوت او د ښمنۍ ته تیار او چمتو وي. کله چې ښوونکی

د خپل شاگرد دغه ډول حرکات وینی نو د مایوسۍ او نا امیدۍ څپه پرې غلبه وکړي او ځان ناکام او بې تجویزه حس کوي.

## ولې ځینې ښوونکي په خپله وظیفه کښې بریالي او ځینې نور يې ناکام وي؟

د یو ښوونکی بریالیتوب او ناکامي د ده او د شاگردانو ترمنځ داړیکو په ډول پورې ښه په ښه اړه لري یو ښوونکي ته تر هر څه مهم او لومړی ضرورت دادی چې د خپلو شاگردانو سره نیک او دوستانه روابط جوړ کړي او د درس ورکول يې دوهم ضرورت وگڼل شي.

د ښوونکي او شاگردانو ترمنځ نیك او دوستانه روابط څرنگه پیدا کیږي؟

داپوښتنه ددې بحث اصلي او مهمه موضوع ده چې وروسته به پوره وڅیړل شي:

دانسانانو ترمنځ ارتباط او اړیکې د خبرو کولو (Communication) افهام او تفهیم په واسطه پیل کیږي. خبرې د افهام او تفهیم بنسټ تشکیلوي، داستاذ او شاگردانو ترمنځ خبرې، افهام او تفهیم چې پوره بحث به پرې وشي د دې بحث عمده برخه ده.

خدای جل جلاله په قرانکریم کښې فرمائي: خدای پاك ج، انسان پیدا کړی او هغه ته يې خبرې ور زده کړې.

د ښوونکی او شاگردانو ترمنځ رابطه مستقیماً په دې پوری اړه لري چې آیا ښوونکي په مختلفو حالاتو او وختونو کښې خپلو شاگردانو ته معقول او قناعت بخښونکی ځوابونه ورکولای شي او که نه.

د ښوونکي خبرې او ځوابونه دده او د شاگردانو ترمنځ ښه یا بد روابط جوړوي.

## د ښوونکي او زده کوونکو د روابطو په باب څو غوره ټکي :

ښوونه او زده کړه دوه بېلا بېلې موضوع گانې دي . د دې له پاره چې ښوونه او زده کړه په اغېزمنه توگه ښه عوره کړي نو د غو دواړو ترمنځ د یو پُل په څېر رابطه ټینګول ضرور دي . د رابطې په ټینګولو کښې خبرې او د خبرو د کولو طرز ډېره غوره وسیله ده.

خبرې تل دوه اړخونه لري ، که اورېدونکو ته په زړه پورې وي نو ور ته خوند ورکوي چې په دې صورت کښې ستونزې له منځه ځي او دوستانه فضا منځ ته راوړي . خو که خبرې داورېدونکي د ځورېدو سبب شي نو بیا ئې عقده ورسره پیدا او د کړکیچنو ستونزو د رامنځته کېدو سریزه جوړوي .

خدای جل جلاله فرمائي : ای مؤمنانو! تمسخر دې نه کوي یوه ډله پر بلې ډلې شاید چې وي هغه ډله بینه او بهتره له مسخره کوونکو ځنې.

حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمائي : تاسو گمان کوی پر مؤمن د نېك سرې ترڅو موچې ورڅخه شر نه وي لید لی.

دښوونکي د پاره د خبرو په وخت کښې ډېره غوره لارداده

چې شاګردانو ته د بنه او بد یا د ښه او وړ الفاظ استعمال نه کړي تر څو په کډه او یوځای کار کولو ته زمینه برابره شي . د شاګردانو پوهول او په هغوئ کښې مثبت او مطلوب بدلون راوستل د هر ښوونکي ارزو ده ، خو زیات وختونه چې ښوونکي او د ښوونځیو اداره چیان د تدریس کومې طریقې (میتودونه) په کار وړي مثبتې او په زړه پورې نتیجې نه ورکوي . شاګردان ئې په خپل ځان متکي نه وي ځکه چې په ځان باور او ویسا نه لري ، خپل مسئولیت په خپله نه پیژني ، تل ماٌیوس او د درس سره بې علاقې ښکاري .

## د شاګرد د منفي تحول عوامل

د شاګرد دا ډول منفي تحول او بدلون ډېر عوامل لري چې ځنې ئې په لاندې ډول دي .

۱- **کورنی چاپیریال:** کورنۍ د زده کړې لومړنی ځای دی ، نو ځکه مور او پلار او د کورنۍ نور مشران او د کورنۍ د روزنې طرز د ماشوم په مثبت او منفي بدلون کښې اغیزمن رول لوبولای شي .

۲- اقتصادي حالات .

۳- محیط او چاپیریال .

۴- په شاګرد باندې د ښوونکي له خوا د ځینو خاصو قیودو وضع کول .

مثلاً : ښوونکي خپل شاګرد ته وائي که چیرې دې زما د پوښتنې ځواب په صحیح ډول ورکړه نو یو کیک به جایزه درکړم ، یا که د نورو شاګردانو څخه لوبه وګټې نو یو توپ به په جایزه کښې درکړم ،

همدارنګه شاګرد ترفشار لاندې راوستل او په اجبارې توګه يې درس ته رابلل او دغه ډول نور مثالونه ټول داسې عوامل دي چې د يو شاګرد طبيعي او نورمالي ودې ، پرمختګ او بدلون ته زيان رسوي ، ځکه چې شاګرد د جايزې ګټلو او يا د ښوونکي د قهر ، وهلو او ربړولو څخه د ځان ژغورلو په خاطر په خپل ځان باندې د توان څخه زيات بوج او درونډ پېټي مني ، چې داکار په نتيجه کښې شاګرد ته عقدې پيداکوي او روعتيا ته يې زيان رسوي ځکه نو په راتلونکي ژوند کښې شاګرد خپل کارونه په ښه او بريالي ډول سرته نه شي رسولای .

۵ - د تدريس په وخت کښې د ښوونکي سخته رويه او د شاګردانو سره درس نه شريکول د شاګردانو د منفي او نا مطلوب تحول او بدلون سبب ګرځي ځکه چې زياتره شاګردان له دغه ډول ښوونکي څخه کرکه کوي او تل ورته د داسې ښوونکي درس د تشوتور او بې ګټې خبرو په څېر برېښي ، د درسي ساعت د پوره کېدو او ختمېدو په انتظار شېبې شمېري او کله چې درسي ساعت بدل شي نو د زړه له کومې شکر وباسي ، چې ښه وشو چې ترې په خير خلاص شو .

د شاګردانو خبروته په ځير سره غوږ نه نيول او په نرمه ژبه ځواب نه ورکول د شاګرد په خواصو کښې منفي او نا مطلوبه اغېزه کوي .

ښه او تجربه کار ښوونکي له هغو سلوکونو څخه چې مخکښې ياد شول ډډه کوي او په شاګردانو کښې د مثبت بدلون د پيدا کېدو له پاره داسې استعداد او ورتيا لري چې پرته له توصيې يا سپکو سپورو خبرو يې

خپلو کمزوریو ته متوجه کړي او په همدې ترڅ کښې داسې موقف غوره کوي چې نه شاګرد ته په خپله موضوع حلوي او نه ئې ورته دحلولو پېشنهاد کوي بلکه شاګرد دې ته چمتو کوي چې خپل مشکلات په خپله وپېژني او دحل لارې هم په خپله پیدا کړي.

یو هوښیار او تجربه کار ښوونکی دخپل یو شاګرد پوښتنو ته په لاندې ډول ځوابونه ورکوي:

مثال: ښوونکي خپلو زده کوونکو ته وویل چې هریو په خپله خوښه یو مضمون ولیکئ؟

یو زده کوونکی پوښتنه کوي چې معلم صاحب ستاسې نظر غواړم، مضمون دڅه په باب ولیکم؟

ښوونکی: آیا تاسو د موضوع په ټاکلو کښې مشکلات لرئ؟

زده کوونکی: هو، ډېر اوږد فکرمې وکړ خو موضوع مې ټاکلی نه شم.

ښوونکی: رښتیا ده چې تاسو په دې برخه کښې اوږد فکر کړی او دموضوع ټاکلو مشکل لرئ؟

زده کوونکی: نورو په کومو موضوعاتو کښې مضامین لیکلی دي.

ښوونکی: تاسو غوښتل کوئ چې په داسې موضوع مضمون ولیکئ چې خاص اهمیت ولري؟

زده کوونکی: هو، زه غواړم چې د یوې خاصې موضوع په باب د- مضمون په لیکلو اعلی نمرې واخلم.

ښوونکی: داسې ښکاري چې ځان ته فشار لاندې راولئ ترڅو اعلی

نمرې واخلئ؟

زده کوونکی: هو، مور او پلار مې زما په ضعیفو او لږو نمرو راته په قهرېږي او له ماځخه زما د مشرورور په څېر دنمرې غواړي.

ښوونکی: تاسو غواړئ چې دخپل مشرورور په شان نمرې ولرئ؟

زده کوونکی: هو، زه داسې نه یم لکه زما مشر ورور، زه دنورو دېرو شیانو سره مینه لرم، هیله کوم چې زما مور وپلار ما همداسې قبول کړي لکه څنګه چې زه یم.

ښوونکی: ستاسو نظر دادی چې ستا دورور او ستاشخصیت سره فرق لري او مور و پلار دی باید دا خبره قبوله کړي؟

زده کوونکی: تر او سه پورې مې دا حال هیچا ته هم نه دې ویلی، کوم چې زه حس کوم مګر اوس به مور او پلار ته ووایم چې ما اعلی نمرو اخستلو ته مه مجبوروئ.

ښوونکی: تاسو غواړئ چې خپل نظر مو مورو پلار ته ووایئ؟

زده کوونکی: هو، که هغوئ دنمرو خبرې بس کړی، امکان لري په آرام ډول سره درس ووایم او دېرنوي شیان زده کړم.

ډېره شکریه چې زما د مشکل په حلولو کښې دې را سره مرسته وکړه.

ښوونکی: زه تل تاسو ته په دې هکله ښه راغلا ست وایم.

که پورتني مثال ته ښه ځیر شو نو ږو ښا نه څرګندېږي چې ښوونکی خپل زده کوونکی ته د مشکل دحل پېشنهاد او دحل سپارښتنه نه کوی بلکه د هغه خبرې په دقت او فعاله توګه اوري، او دخبرو

خبرو په نتیجه کښې زده کوونکي ځانته په خپله د حل لاره پیدا کوي .

درس معلم گر بود زمزمهٔ محبت    جمع بمکتب آورد طفل گریز پای را

## دشاگرد متاثرکیدل :




ترڅوچي ښووتکی په ټولګی کښې دقدرت ، وهلو ټکولو ، زوروینې ، مکافاتو او مجازاتو څخه کار اخلی او خپل نظر او غوښتنه په اجباري دول سره په شاګردانو ورتپي ترڅو به يې زده کوونکی په خپل ځان بې اعتماده او غیرمتکي وي ، او د مشکل په حلولو کښې به يې د نورولاره ښوونې او مرستې کولو ته سترګې په لاره وي . کوم شاګردان چې دغه دول وروزل شي نو نه یوازی داچې په خپل ځان تکیه او باور نه لري بلکه د بدن وده او دفکر انکشاف او تحول يې هم په عادي او

نورمال حالت سره نه وي او ټول ژوندئ دعقدو او يو لړ مشکلاتو څخه ډک وي .

# دبېلابېل عمر زده کوونکو په باب عامه فلسفه

دماشومانو دزده کړې په هکله ډېر زيات کتابونه ليکل شوي او په ټولو کښې په دې موضوع زوراچول شوی چې دبېلا بېلو عمرونو شاګردانو خواص ، استعداد او روحيات يو تربله سره فرق لري نوځکه ضروري برېښي چې دزده کوونکو له پاره دې د تدريس او روحياتو په باب مختلف معلومات او ميتودونه وليکل شي مګر عامه فلسفه او نظر دا مني چې زده کوونکي که په هر عمر کښې وي بيا هم انسانان دي او د ښوونکي سره ښه روابط پيداکولای شي . ښه او بد روابط د ښوونکو او زده کوونکو ترمنځ د خبرو، حرکاتو او فعاليتونو محصول ګڼل کېږي .

مثلاً : د شاګردانو ويش د رنګ،پوستکي ، ذکاوت ، اقتصادی حالت ، غښتلتيا او کمزورتيا له مخې کېدای شي چې د ښوونکو او زده کوونکو ترمنځ د ښو يا بدو روابطو د جوړېدو سبب شي .



# د ښوونکي او زده کوونکو ترمنځ اغیزمن روابط

ډیر ښوونکي د خپلې وظیفې د پیل کولو په لومړي سرکښې د معلمۍ سره ډیره مینه او دلچسپي ښکاره کوي خود لږ وخت تر تیرید و وروسته دې نظر ته رسیږي چې:

ماغوښتل چې زده کوونکو ته د ډیرو نوو او غوره شیانو ښوونه، نوي علمي تحقیقات او ابتکارات وکرم مگر د خواشینۍ ځای دی چې دا شیان سر ته نه رسیږي او هر وخت نوي ټولګي ته ورتلل او درس ورکول مې نه خوښیږي.

د ښوونکي د ټولو مشکلاتو بوج په شاګردانو راځي او زده کونکي هم ځانونه تر فشار لاندې حس کوي او داسې فکر کوي چې هره ورځ ټولګي ته ورتګ، ښوونکي ته غوږ نیول او د مرئې په شان کار کول زموږ نه خوښیږي. له دې امله زده کوونکي په دروا غو ویلو پیل کوي یو تر بله جنګ او شخړې راپیدا کوي، او دا تقاضائې زیاتیږي چې لږ درس ووائي.

په دغه ډول حالاتو کښې ښوونکی د خپلې مایوسۍ او په شا تلنې سببونه نشي پیژندلی او په دې ډول شکایتونه شروع کوي.

ځما استاذ ډیر خراب وُ ځکه چې زه ئې د محیط او چاپیریال له مشکلاتو څخه خبر کړی نه وم په صنف کښې د شاګردانو شمیر ډیر زیات دی، معاش مې لږ دی او د ښوونځي اداره ډیره کمزوری ده. ځنې ښوونکي دا نظر پیدا کوي چې زه خپله عهده سرته نشم رسولای او ناکام یم.

دا ډول ښوونکي د خپل ځان سره رنځیږي او بالاخره له خپلې وظیفې څخه ځان گوښه او استعفا کوي.

مسجد قبا کښې ناست وو، زمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم هم مسجد ته داخل شو، سلام ئې پر اصحابو (رض) واچوه، یوه ډله اصحاب (رض) د الله جل جلاله په ذکر بوخت وې او بله ډله ئې په زده کړه مصروف وې. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې تا سو دواړه ښې ډلې یاستئ مګر خپله د زده کوونکو په ډله کې کښېناست او وې ویل: چې زه خدای جل جلاله د بشر د پاره معلم رالیږلی یم. د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د دې وینا څخه معلومیږي چې زده کړه په اسلام کښې ډیر لوړ مقام لري د زده کړې څخه مطلب دا دی چې د الله جل جلاله او زمونږ د پیغمبر صلی الله علیه وسلم امر پرځای کړو. د زده کړې څخه مطلب دادی چې د خدای جل جلاله پر وحدانیت او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په پیغمبرئ ایمان ولرو، د قرآنکریم په اوامرو او د نبی کریم (ص) په احادیثو عمل وکړو همیشه د باطل او شیطاني اعمالو په مقابل کښې مبارزه وکړو.

کوم شیان موچې یا د کړي وي په ژوند کښې ئې پلې کړئ او کوښښ وکړئ چې ستاسو زده کړه د خپل ځان او نورو انسانانو لپاره ګټوره ثابته شي.

بر سیره پر دې زده کړه په ښه او ښکه طریقه سره ماشومانو ته انتقال کړئ. د زده کړې مهم هدف دادی چې سړی د خدای جل جلاله او پیغمبر صلی الله علیه وسلم د احکامو سره سم اجتماعي کړه وړه ولري او خپل علم د نورو خلکو په خدمت کښې په کار واچوي او نورو خلکو ته ئې په ښه توګه ورسوي.

ښوونکی باید وپوهیږي چې د مختلف عمر ماشومان مختلفې ارزوګانې، ضرورتونه او مختلف استعدادونه لري نو ځکه ښوونکی باید د ماشومانو عمر په نظر کښې ونیسي او مطابق ذهني درس وکړي.

ښاغې د ښوونکي ځینې ادعاوې او غوښتنې صحیح هم وي خولو یه اشتباه ئي په دې کښې ده چې تجربه یوه انتقالي عملیه ګڼي او حال دا چې یو استاد عملي کارونه او تجربې بل چا ته انتقالولای نشي ، ځکه چې هر ښوونکي ته تجربه هغه وخت پیدا کیږي چې کله پخپله د ښوونې په عملي جیریان او کارکولوکې داخل او مشغول شي .

د معاش لږوالی، په ټولګي کښې د ز ده کوونکو د شمیر ګڼ والی او د ادارې کمزورتیا د ښوونکي په استعداد او قابلیت کښې د کتلو وړ بدلون نه شي راوستی ځکه که د داسې ښوونکي معاش زیات او د شاګردانو شمیر ئې لږ شي او اداري کمزورتیا هم له منځه لاړه شي ، ښوونکی به بیاهم مایوسي لري او په خپله وظیفه کښې به خوښ نه وي . حقیقت دا دی چې ډیر زیات ښوونکي شته چې د تدریسي چارو د پوهیدلو څخه لرې پاتې شوي دي .

## د ځینو خلکو په نظر ښه او موفق ښوونکی باید لاندینې صفتونه ولري :

۱- ښه ښوونکی متین ، آرام او د درندې ستې څښتن وي چې ژر نه احساساتي کیږي.

۲- ښه ښوونکي ته ټول شاګردان یو شان ښکاري ، چا ته ګران او چا ته ناګران نه وائې او په هغوی کښې د تور او سپین ، معیوب او بې عیبه د توپیر پلټنه نه کوي .

۳- ښه ښوونکی د شاګردانو احساسات د ځان سره پټ ساتي .

۴- د ښه ښوونکي تل په ټولګي کښې نظم او د سپلین ته پام وي. او د آرامې فضا جوړولو ته هڅه کوي .

۵ - ښه ښوونکی خپل خوی اوخواص نه بدلوي ، هیڅ شی يې نه هیریږي ، د غلطيدوڅخه ځان ساتي او خپل ځان پخپله کله ښه او کله بد نه حس کوي.

۶ - ښه ښوونکی د خپلو شاگردانوڅخه زيات معلومات لري او زده کوونکوته تل يو ( صحيح ) ځواب ورکوي .

که پورتنيو ټکو ته ښه ځير شو نو په ښکاره ډول څرگنديږي چې دا داسې نظريات دي چې دانسان څخه د زياتې اوبې ځايه توقع کولو ښه لري ، ځکه چې سهوه اوخطا ، غلطي او بې نظمي ، خوشحالي اوخفگان ، مينه ناکي او بې ميني توب اواحساسات ټول هغه انساني خويونه اوخواص دي چې خداى پاك (ج) انسان ته ورپه برخه کړي دي . که څوک په ځان فشار او زور راوړي چې دا خواص بدل يا پټ کړي نو په واقعيت کښې خپل ځان دوکه کوي اوځانته جعلي ( بدل شوي ) خواص غوره کوي ، چې دا کار په غيرمستقيم ډول په زده کوونکو اغيزه کوي او د هغوی د مايوسی سبب کيداى شي .

په تجربې سره ثابته شويده چې زده کوونکي هماغه وخت په ښه اوخوشحاله ډول زده کړه کولاى شي چې د ښوونکي او شاگردانو ترمنځ د واقعيت په بنسټ ولاړه ښکه رابطه موجوده وي ، اوکه نه نو ښوونکی په خپلو ټولوکوښښونو کښې ناکام وي .

خداى (ج) ، پخپل سترکتاب قرآن عظيم الشان کښې ځاى پرځاى خپل پيغمبر ته فرمائي :

« اى پيغمبره ! تاته مې لوړ اخلاق درکړي ، ته رينښتيني اوصادق يې ، ته آمين يې ، ته عفوه کوې خلکو ته ».

## د ښوونکي او زده کوونکي ترمنځ ښه اوبد روابط څه ته وائي ؟

د ښوونکي او زده کوونکي ترمنځ ښه روابط د لاندينيو ټکيو په پام کښې نيولو سره ټينګيداى شي:

۱- ښوونکى او زده کوونکى يو د بل په وړاندې صادق او ريښتيني وي او يو د بل په خلاف سره په زړه کښې مسايل ونه ساتي .

۲- ښوونکى او زده کوونکي په مناسب فرصت کښې په خبرو کښې برخه واخلي په دې شرط چې يوبل ته په ارزښت قايل وي .

۳- دواړه دوه اړخيز ضرورت او اړتيا ته پام ولري او د يو اړخيز ضرورت او اړتيا احساس د منځه يوسي .

رسول الله (ص) فرمائي : کوم شى چې دځان لپاره ښه ګڼې د بل مسلمان لپاره يې هم ښه وګڼه ، کوم شى چې دځان لپاره بد ګڼې د بل لپاره يې هم بد وګڼه .

۴- ښوونکى او زده کوونکى يوله بل نه د ضرورت په اندازه فاصله ونيسي ترڅو يو بل باندې د معقول انتقاد او اعتراض فرصت تر لاسه کړي ، او هريوځېل شخصيت ته وده ورکړي .

۵- ښوونکى او زده کوونکى د متقابلو اړتيا او د پوره کولو لپاره عادلانه لار وپلټي .

۶- ښوونکى د زده کوونکو خبرو ته په غور سره غوږ ونيسي ، او د لازمو اصلاحاتو لارښوونه ورته وکړي .

که د مستطيل شکله ساحې شکل ته ښه ځير شو نو وينو چې دا ساحه د ډيرو نقطو څخه جوړه شويده ، دا ټولې نقطې د يو شاګرد د مثبتو حرکاتو

د يو شاګرد د
تول
معقول حرکات

نما يندګي کوي ، يا داچې دايوه کړکۍ ده
چې د يو شاګرد تول مثبت حرکات پکښې
له ورا يه ښکاري.
اوس که مستطيل شکله ساحه په
دوو مساوي برخو وويشو نو يوه برخه
به يې د شاګرد د معقول او بله برخه به يې نا معقول حرکات و ښيئ.

| | | |
|---|---|---|
| شاګرد د معلم توصيه مني او عمل پرې کوي. ← | د زده کوونکي معقول حرکتونه | → شاګرد په آرام د ول خپله وظيفه سرته رسوي. |
| شاګرد د رسم ترکښلو وروسته د خپل کارکولو ځای پاکوي ← | | → شاګرد د بل ټولګيوال سره مرسته کوي. |
| شاګرد کتابونه او تعليمي مواد په خپلو ځايونو نه ايږدي ← | د زده کوونکي نامعقول حرکتونه | → شاګرد وياڼ او غالمغال کوي |
| شاګرد د خپلو ټولګيوالو سره بد سلوکي، شخړې او دعوی کوي. ← | | → شاګرد د نورو ټولګيوالو مزاحم کيږي. |

په پورتني شکل کښې د يو شاګرد مثبت او منفي حرکات سره تصادفي
برابر دي.

لکه چې ښوونکی د زده کوونکو په برخه کښې د ښه يا بد قضاوت کوي
دغه راز زده کوونکي هم د ښوونکي په برخه کښې د ښه يا بد قضاوت کوي،
مګر د يوه ښوونکي په نظر د يوه شاګرد حرکات معقول او د بل ښوونکي په
نظر د همدغه شاګرد حرکتونه نا معقول او منفي ګڼل.

## د دوو ښوونکو نظريات د يوه شاګرد په برخه کښې :

لاندېني دوه مستطيلي شکلونه د يوه زده کوونکي په برخه کښې د دوه وُ بيلا بيلو ښوونکو نظريات را ښيئي :




د دوهم ښوونکي نظر




د لومړي ښوونکي نظر

د شکلونو څخه څرګنديږي چې لومړی ښوونکی ډير نرم چلند او د توافق کولو توان لري . په هره مسئله باندی ژرا و سمدلاسه د غلطې يا صحيح فيصله نه ورکوي . بلکه څوک نه مجبوروي چې د ده خبره او فيصله دې ارو مرو او په مطلق ډول ومني .

دا ډول ښوونکی په ټولو کارونو کښې د ډاډ او ښه باورښښتن وي او د ژوند په ټولو اړخونو کښې د نورو خلکو سره ښه روابط او اړيکې ټينګولای شي .

دوهم ښوونکی چې تل انتقادي روحيه او ډيرې زياتې نفساني غوښتنې لري ، ناآرامه او بې باوره وي او د شاګردانو په برخه کښې د شکمن او منفي نظرښښتن وي چې پر هيچا اعتماد نه لري . تل خپل زده کوونکي

په حقه او ناحقه د تهدید او ویرې سره مخامخ کوي .

کله چې د خپلې خوښې پرخلاف کومه خبره واوري، نو حسد او کینه يې دومره زیاتوالی و مومي چې د دښمنۍ په دود يې په مغز کښې ساتلې وي او خپل زړه کوو نکې پرې ربړوي . دوحې حالت يې دومره کمزوری او ناآرامه شي چې د یرې نیمګړتیاوې په ځان کښې ويني خو پټې يې ساتي .

خدای پاك (ج) فرمائي : چې ای پیغمبره (ص) ! ته مې په سبب د رحمت خپل سره نرم زړی کړې د نورو لپاره که چیرې وې ته تندخویه او سخت زړی نو خلك به دې دچاپیریال څخه تیت شوي وی .

له د غه ډول ښوونکي څخه شاګردان تل خپل ځانونه ګوښه کوي او ارتباط ورسره نه نیسي . ځکه چې شاګردان د ښوونکي له دغه ډول حرکتونو څخه ځوریږي او په نتیجه کښې يې داسی ناوړه اغیزه په شاګردانو پریوځي چې د ښوونکي د درس سره مینه او علاقه نه ښکاره کوي .

## خبرې کول او په ځیرسره يې اوریدل :

لکه څنګه چې هرشی یو ټاکلی حدلري ، دغه رنګ خبرې نه کول او غلي پاتې کیدل هم یو معین حد لري . که شاګردان په ټولګي کښې د تل لپاره چوپ کښیني او خبرې ونکړي، نو ذهني وده او د استعداد غوړیدنه يې زیانمنه کیږي . که یواځې ښوونکی په ټولګي کښې د لوډسپیکر په څیر غږیږي او شاګردانو ته د بحث او خبرو کولو موقع نه ورکوي نو شاګردان يې غیرفعال پاتې کیږي ، چې په دې صورت کښې ښوونکی د شاګردانو په مشکلاتو او د خپل تدریس په ارزیابۍ هم نشي پوهیدای ، ځکه نو دارنګه تدریس چې په

حقیقت کښې یوه اړخیزه بڼه لري ، اغیزمن نه وي.

تربیتي علوم په دې ټینګار کوي چې شاګردان باید په ټولګي کښې فعال وي او ښوونکی دې د لارښود په صفت وي شاګردان دې کار کوي په کوم ځای کښې چې لارښوونې ته اړتیا پیدا کوي ، ښوونکی دې لازمه لارښوونه وکړي.

په ځیر او فعال ډول سره دخبرو اوریدلو څخه مقصد دا دی چې ښوونکی دخپل تدریس په وخت کښې زده کوونکو ته د بحث او پوښتنو کولو زمینه برابره کړي ، ترڅو دخپل درس په ماهیت او اغیزه و پوهیږي . او ارزیابي یې وکړای شي چې پدې صورت کښې ورته دخپلو شاګردانو استعداد هم معلومیږي او غلط فهمي له منځه ځي . په خبرو کولو او په ځیر سره ئې اوریدلو کښې مفاهمه او د فکر څرګندونه (Communication) غوره رول لوبوي.

خدای تعالی (ج) په قرآنکریم کښې فرمایي : خدای انسان پیدا کړ او قدرت ئې دخبرو کولو ورته ورکړ.

**انسانان ولې خبرې کوي او خبرو کولو ته څه ضرورت پیدا کیږي ؟**

یو انسان هغه وخت د بل انسان سره خبرې پیل کوي چه کله ورته احتیاج پیدا شي او په خبرو سره د هغه شي اظهار کوي چې تر پوستکی لاندې ئې په بدن کښې تیریږي . په حقیقت کښې انسان دخپل شوند په او بزدو کښې د خپل بدن د داخلي تعاملاتو تقلید او پیروي کوي.

**خبرې کول :-** اطلاع او خبر د بدن هغه داخلي تعاملات دي چې

بیرون ته یې استوي. د دې مسئلې د ښه روښانه کولو لپاره دوه لاندیني شکلونه څیړو، چې په دوو مختلفو وختونو کښې د انسان د بدن د داخل نما یندګي کوي.




جسم یې متوازن حالت لري.

د جسم متوازن حالت یې لږ غیرثابت معلومیږي.

د یو ښوندي جسم په داخل کښې چې لوږه، تنده، ستړیا، سرګرداني، ویره او دا ډول نور تاثیرات پیداکیږي، ټول یې د بدن د داخلي تعاملاتو له امله وي، چې په سترګو نه لیدل کیږي، خو د بدن تر پوستکي لاندې د حروفو (تورو) په ډول پاتې کیږي. مونږ د بدن دا داخلي تعاملات نورو خلکو ته د خبرو په واسطه ورښکاره کوو.

خبرې کول د یو انسان د بدن د داخلي تعاملاتو نما یندګي کوي. ټخپله خبرې د بدن داخلي تعاملات او احساسات نه دي بلکه د داخلي تعاملاتو سره معادلې او د نما ینده په حیث دي.

د ځینو انسانانو د بدن داخلي تعاملات بیرون ته څرګنده اطلاع او خبر ورکوي لکه په لاندې شکل کښې:




خو متاسفانه چې ډیر وختونه د داخلي تعاملاتو سره په بدن کښې نور احساسات هم یوځای وي، په ځینو وختونوکښې د داخلي اړتیا پټول فرهنگي علت لري . مثلاً یو شاگرد ته په ټولگي کښې د بولو ضرورت پیداکیږي او بخپل ځان فشار راوړي خو نه غواړي چه ښوونکی او یا هم صنفیان يې خبرشي .

چې پدې صورت کښې بیرون ته اطلاع یاخبر ورکول دومره څرگند نه وي . لکه د یوڅو کوونکي لاندیني اظهارات او خبرې چې ښوونکی پرې په اسانۍ سره نه پوهیږي .

| ځ ده کوونکی | د زده کوونکي احساس بخپل جسم کې | د ځ ده کوونکي اطلاع یاخبر |
|---|---|---|
| ۱ــ | د راتلونکي امتحان څخه ویره | د اساسي قانون په برخه کې ټول شیان ولې یاد کړم ؟ |
| ۲ــ | د منډې په لوبه کښې د ښوونکی له خوا د ټاکنې ویره . | ایا مجبوریم چې نن په لوبه کې برخه واخلم ؟ |
| ۳ــ | کورنۍ وظیفې ډیرې زیاتې دي | دا شیان ډیر مشکل دي او زه پرې نه پوهیږم . |
| ۴ــ | د لاسي کار ونود نتیجې څخه راضي نه یم | لاسي کارونه د انجونو وظیفه ده . |

په دغه ترتیب نورې ډېرې مسئلې او خبرې د زده کوونکو واضح او څرګندې نه وي او ښوونکی ورته هم دومره توجه نه کوي، چې بالاخره د شاګرد او ښوونکي ترمنځ ارتباط خراب وي او شاګردان په ښه ډول زده کړه نشي کولای.

د دې لپاره چې ښوونکی دیو زده کوونکي په اصلي مشکل و پوهیږي باید خبرو ته يې په غور سره غوږ کښیږدي او په فعاله توګه يې واوري، بیا ورسره په ښه لهجه خبرې پیل کړي ترڅو د هغه په مشکل پوره وپوهیږي.

## یو ښوونکی څنګه فعال او په ځیر سره اوریدل کوي ؟

فعال او په ځیر سره اوریدل په ټولګي کې د ښکاره او ریښتیني افهام او تفهیم زمینه برابروي، او د خاصو موضوعاتو د څیړلو او خبرو اترو کولو څخه مثبته او په زړه پورې نتیجه په لاس راځي. صنفي بحثونه او مذاکرې د شاګردانو د تحرک او تحول سبب کیږي او درس ویلو ته يې زمینــــه برابریږي، ځکه چې شاګردان پخپل ځان باور پیداکوي. ټولکه چې شاګردانو د ښوونځي څخه بیرون کومې هیجاني پیښې لیدلی وي او په ټولګي کښې وربانديې غږیږي باید چوپ کیدو ته يې مجبور نه کړو، بلکه ازاد يې پرېږدو او بحث ورسره وکړو.

خو د خواشینۍ ځای دی چې د افغانستان په لومړنیو ښوونځیو کې له ډېرې زمانې راهیسې د ښوونکو او زده کوونکو ترمنځ بحث او په ګډه (ګروپي) مذاکره رواج نلري، بلکه ښوونکی ټل هڅه کوي چې د دیکتاتورۍ څخه کار واخلي او د لښتې په استعمالولو سره شاګردان آرام

دوهم ؛ د درس ورکولو او درس ویلو طریقه مونږ ته حضرت محمد (ص) داسې ښوولې ده ؛

لَيِّنُوا لِمَنْ تُعَلِّمُونَ وَلِمَنْ تَتَعَلَّمُونَ مِنْهُ ؛ دهغه چا په نسبت نرم او ملایم اوسئ چې علم ورزده کوئ او یا ترې تاسو د علم زده کړه کوئ.

رښتیا ده چې په زده کړه کې نرمه لهجه او نرمي د ډېر موثر رول لوبوي. د ماشوم تربیه د نرمې ځمکې په شان ده. که په نرمه ځمکه کښې غنم وکرئ نو د غنمو حاصل ورکوي او که ګلان په کښې وکرئ نو ګلان زرغونه کوي او که چېرې اغزي وکرئ نو حاصل به یې اغزي وي.

یو شاعر وائي ؛

کرد ګلو کړه چې سیمه دې ګلزار شي اغزي مه کره چې پښو کښې به دې لاړ شي

ځنې صنعتي هیوادونه خپل ماشومان داسې تربیه کوي چې هیڅ نوع اخلاقي ارزښت نه لري او اکثره په اخلاقي فساد ونو بوخت دي ، مادي شیانو ته یې ډېر لمسوي، کله چې لوی شي د نورو هیوادونو د پاره داغزي غوندې خاصیت لري. داسې انسانان په خپله اجتماع کښې د بشري قوانینو او ضوابطو تابع او فقط ماشیني انسان وي. دوئ فقط د کار کولو له پاره یوه قوه وي مګر هیڅ اخلاقي ارزښت نه لري. په همدغو هیوادونو کښې زیات وګړي روحًا ډېر ناآرامه او په پریشانئ سره ژوند کوي. نو ځکه ویلای شو چې په دا رنګه ټولنو کښې به یو سړی انجنیر، دوکتور او استاذ وي مګر هیڅ ځانګړی شخصیت او اجتماعي ژوند به نه لري ټول عمر به ماشیني انسان وي. د وګړو ترمنځ یې ارتباط ډېر کم او

وساتي ، همدا علت دی چې دوخت په تېرېدو سره زده کوونکي خپل طبيعي استعداد جرأت ، ځيرکتيا او په خپل ځان باور له لاسه ورکوي .

ښوونکی کولا ی شي چې په ټولګي کښې يو په زړه پوري درس په ګډه اوګروپي توګه ولري او د زده کوونکو خبرو او نظريا تو ته غوږ ونيسي .

لومړی : مثلاً ښوونکی د زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې « د روسانو له خوا د افغانستان اشغال » درس تاسو ته ولوست او س ستاسو نظر په دې برخه کښې څه دی ؟

بېلا بيل زده کوونکي خپل نظريات په لاندې ډول څرګندوي :

**احمد :** زه پوه نه وم چې روسان دومره لوی شيطانان اوظالمان دي ، مګر اوس پرې پوه شوم .

**محمود :** په دې برخه کښې ما ډېر شيان لوستي او اورېدلي وُ مګر دا لومړی رښتيني معلومات وُ چې ومې لوستل .

عبدالله : ماهم پرون شپه د روسانو ظلمونه خپلو ملګرو ته بيان کړل .

**ضياء الرحمن :** ځني خلک وايي چې روسان افغانستان ته را دعوت شوي وو .

**وحيدالله :** دا د روسانو او خلقيانو نظر دی ، او روسان هيچا هم نه دي دعوت کړي ، بلکه په خپله را غلي دي .

**توريالی :** په هغه وخت کښې حفيظ الله د خلقيانو پاچا وُ او هغه د خپل مرګ لپاره دعوت کړی وُ .

**بريالی :** له همدې څخه پوهېږو چې روسانو زموږ په هيواد يرغل کړی دی ځکه چې هيڅوک د ځان د وژلو لپاره څوک نه دعوت کوي .

ښوونکی : تاسو څه فکر کوئ چې ليکوال دروغ ليکي ؟

**شريف الله :** ټول ليکوال دروغ نه ليکي ، مګر ځينې يو قصه لنډه او

ځني يې اوږده ليکي .

نثار احمد :- نه پوهيږم چې عربي هيوادونه د روسانو په هکله څه ليکي ؟ زه غواړم چې د دغو هيوادونو نشريات پيدا کړم او ويې لولم.

محمد شيرين :- ټول عربي هيوادونه په يو نظر نه دي.

شاه جهان :- زه نه پوهيږم چې غربي هيوادونه پدې برخه کې څه ليکي ؟

ښوونکی د زده کوونکو د نظريا تو په مقابل کښې د ښه يا بد ، صحيح يا غلط الفاظ نه استعمالوي بلکه زده کوونکو ته غوږ نيسي او په پای کښې وائي چې د مختلفو هيوادونو ليکنې به راپيدا کړو او په راتلونکي درسي ساعت کې به پرې بحث او خبرې اترې وکړو .

که ښه ځير شو نو په دغه ترتيب سره په ټولګي کې يوا غيزمن کروپي بحث او مذاکرات منځ ته راتلای شي او ښوونکی د شاګردانو استعداد، ځيرکتيا او کمزورتيا د ځان سره ساتي . زده کوونکی بايد تل په ټولګي کې دغه ډول بحثونو او په ګډه کارکولو ته وهڅول شي .

## دوهم مثال :-

کله چې ښوونکی د زده کوونکي سره غږيږي بايد داسې بحث او خبرې ورسره وکړي لکه يو صميمي او په زړه پورې دوست سره چې غږيږي او زده کوونکي ته دې هم د غږيدو او بحث کولو موقع ورکړي. ځکه چې د بحث او مذاکرې په وسيله د زده کوونکو پټ رازونه رابرسيره او ښکاره کيږي او شاګردان چمتو کيږي چې په درس کې ګډون وکړي.

ځني وختونه شاګردان غواړي خبرې وکړي خو جرئت نه کوي. ښوونکی باید دا زيرکي ولري چې دا ډول شاګردان خبرو کولو ته وهڅوي.

همدارنګه ښوونکی باید د شاګردانو د خبرو په اوریدو سره د هغوی په مشکلاتو ځان وپوهوي خو د حل لار دې ورته نه پیشنهادوي، بلکه زده کوونکو ته دې موقع ورکړي چې پخپله د مشکلاتو د حل لار وپلټي. ترڅو يې پخپل ځان اعتماد او باور پیداشي او تل د نورو د نظر یا توښکار نشي.

مثلاً د یو شاګرد څخه د ریاضي د مضمون کورنۍ وظیفه په کورکې پاتې شویده نو د زده کوونکي او ښوونکي ترمنځ په لاندې ډول د بحث کولو امکانات شته دی:

زده کوونکی:- له ما څخه د ریاضي کتاب او کورنۍ وظیفه په کور کښې پاتې شویده.

ښوونکی:- ته یو مشکل لرې.

ز :- هو، زه د ریاضي کتاب او د هغو تمرینو کتابچې ته ضرورت لرم کوم چې ما حل کړي دي.

ښ :- فکر به وکړو.

ز :- زه به ورېسې کورته لاړ شم خو اوس بس نه پیدا کیږي.

ز :- فکر کوم چې که دادارې څخه یو کتاب راوړم نو غوره به وي، او ما ته د تمرینو مخ معلوم دی.

ښ :- تاخپل مشکل حل کړ.

په دغه ډول حالاتوکښې د یر ښوونکي دارنګه بحث شروع کوي؛

څه کورته ،کتابونه دې واخله اوکورته دې لاړشه ، ښه دی چې ځان

دې نه دی هیر کړی.

دا ډول بحث د زده کوونکي په روحیاتو ناوړه اغیزه کوي او د دې

پرځای چې د خپل مشکل د حلولو لار وسنجوي د ښوونکي څخه د ځان

ژغورلو فکر ورسره پیداکیږي او مجبوریږي چې څه دروغ او ربښتیا سره

ګډ کړي او ځان خلاص کړي . پدې صورت کې مشکل په خپل ځای پاتې شي

او زده کوونکی د ښوونکي سره عقده پیداکړي .

کله کله په محیط کښې داسې واقعات پیښیږي چې شاګردان ورڅخه

متاثر کیږي. لکه د ښوونځي په مخ کې د بس تکر یدل ، یا د بم چاودنه،

د رخصتۍ رانژدې کیدل یا د امتحان پیل کیدل او نور، دا تول هغه مهم

واقعات دي چې شاګردانو باندې اغیزه کوي او د هغو په هکله غواړي

چې د خپل نظر څرګندونه وکړي . که ښوونکی د شاګردانو خبروته غوږ

ونه نیسي او یواځې خپل درس مهم وګڼي نو شاګردان د مایوسۍ سره

مخ او ناآرامه کیږي چې پدې صورت کې درس ویلو ته نه هوسیږي،

او درس نشي ویلای.

په دغه ډول حالاتوکې ښوونکي ته پکار دي چې د درس ورکولو

څخه د زده کوونکو خبروته غوږ نیول غوره وګڼي او بیا د هغوی ترمنځ

د بحث او مذاکرې اوخبرواترو څخه وروسته درس پیل کړي ، ځکه

چې د کنفرانس په توګه بحث کول د شاګردانو د ذهني ودې او مثبت تحول سبب کیږي او درس ویلو ته یې چمتو کوي.

## مشکلات او د هغو مخنیوی

### مشکل په ټولنکي کې :-

وینو چې د ټولو انسانانو ترمنځ روابط او اړیکي تل داسې وي چې لږ یا ډیر مشکلات لري څکه نو د ښوونکي او زده کوونکي ترمنځ روابط هم د مشکلاتو څخه خالي نه وي. که څه هم هغه ښوونکي چې د ښوونې او روزنې په برخه کې بشپړ معلومات لري د دغه ډول مشکلاتو سره مخامخ کیږي، چې مشکلات یې کاله زیات او کله کم وي.

مشکل چې په لاتین کې یې کانفلکت «Conflict» بولي په اصل کې د کانفلکتس «Conflictus» سره ریښه لري، او کانفلکتس د ټکر کیدلو او اختلاف پیداکیدلو معنی لري.

په عمومي ډول نه تائیدول، وژل، جنګ کول، د چاخبرو ته غوږ نه نیول او پرضد یې مبارزه کول د مشکل په نامه یادیږي.

په هر ډول ټولنه کې د انسانانو ترمنځ مشکلات پیداکیږي، او دا مسئله د ښوونکي د استعداد په لرلو یا نه لرلو پورې دومره اړه نه لري. پدې برخه کې دوه ټکي ډیر مهم دي:

۱- د هغو مشکلاتو شمیر چې حل شوي نه وي.

۲- د مشکلاتو د حلولو طریقې.

## مشکلات د څه نه را پیداکیږي ؟

په ټولګي کې چې کوم مشکل را پیداکیږي هغه یوا ړخیز نه وي بلکه دوه اړخه لري ( ښوونکی او زده کوونکی ) .

مثلاً ښوونکی تل په دې ناراضه وي چې زده کوونکی همیشه خپل ټولګی پاك نه ساتي . اوزه له درس څخه تروزګاریدو وروسته خپل وخت د ټولګي دخونې په پاکولو تیروم .

مشکل که لږ وي او که ډیر، خوعامل ئې زیاتره.نارضایتي وي څکه چې د مشکل د پیداکیدو اړخونه یو دبل دغوښتنوا وضرور یا ټو پرضد موقف غوره کوي .

## ښوونکی په عادي ډول خپل مشکل څنګه حلوي ؟

زیاتره ښوونکي د مشکل دحلولو دپاره یو پرنسیپ اوکرنلاره د ځان سره غوره کوي چې ښستې ئې زیاتره دغالب او مغلوب په تیوري ولاړ وي.

مثلاً یو ښوونکی د مشکل په وخت کې په لاندی ډول غږیږي .

زه نور تاسو پوزې ته راوستی یم .

دا ډیره بده ده چې تاسو تل ځما په مقابل کې د منطق څخه کاراخلئ .

تاسو تل ځانته د هرې خبرې حق و رکوئ .

یو ښوونکی به څنګه په شاګردانو غالب شي چې اداره د ښوونکي څخه دفاع نه کوي ؟

زه کله مسایل ګټم . او کله ئې بایلم . که څه هم کوښښ کوم چې د تل

لپاره غالب اوسم.

یو بل ښوونکی چې د نورو ښوونکو اوماشومانو ترمنځ تل جنګ او ښکړې کوري، خو بخپله د هغوی په مقابل کې مقاومت نه کوي او شاګردان پرېږدي چې هرڅه ئې خوښ وي هغسې دې کوي. دا ډول ښوونکی د ځان سره داسې حالت غوره کوي چې ګواکې شاګردان که هرڅه کوي د ده ښه مزاحم کیږي.

## د ښوونکو ډولونه:

په لنډ ډول ویلی شو چې ښوونکي دوه ډوله دي:

اول:- یوشمیر ښوونکي تل داکوښښ کوي چې پرشاګردانو غالب وي.

دوهم:- بله ډله ښوونکي تل داکوښښ کوي چې د شاګردانوهرډول کړاوونو ته غاړه کښېږدي، ترڅو په ټولګي کې مشکلات را پیدا نشي.

## د لومړۍ ډلې مثال:-

ښوونکی په ټولګي کې د ریاضي درس ورکوي، یوزده کوونکی چې احمد نومیږي زیاتره څو دقیقې ناوخته رارسیږي او د درس لومړۍ برخه ترې تېره وي. د دوی ترمنځ په لاندې ډول سوال او ځواب کیږي:

ښوونکی:- هلکه! ته چې هره ورځ ناوخته راځې نو د درس لومړۍ برخه درځنه تېره وي او زه مجبوریم چې د درس تېره برخه تا ته بیا تکرار کړم، چې داکار ما ته ګران تمامیږي.

زده کوونکی:- استاذه! زه د جبهې په کارونو مصروف یم او د جهاد لپاره مجاهدین تنظیموم، نوځکه لږ شانتې ناوخته رارسیږم.

ښ :- زه پوهیږم چې ته د جبهې په کارونو مصروف یې، او دیو مهم کار اجراء کوې مګر ځما درس هم مهم دی. ترڅو چې منظم کار ونکړې د دې کورس شهادتنامه را څخه نشې اخستلای.

ز :- په تحریري آزموینو کې خو تل کامیاب یم اوکه نه؟ د دې لپاره چې د یو څو جملو تکرار ول درته ډېر ضایع، دا مناسبه نه ده چې تا سو ما ترفشار لاندې راولئ. ځما په نظر خو ځما ناوخته راتګ دومره بد کار هم نه دی.

ښ :- د یر صبر مې وکړ او نور یې نشم کولای، او ته له ځانه شهزاده مه جوړوه. سر له صبا به یا په ټاکلي وخت راځې او یا به بیخي نه راځې.

ز :- مګر.

ښ :- مګر مګر مه کوه. که غواړې چې پدې کورس کې نمرې او شهادتنامه واخلې نو ته به هم د نورو پشان پخپل وخت راځې. اوس دې پخپل ځای کښېنه.

ز :- (په خفګان سره وائي) ښه صیب، کوښښ به کوم.

په پورتني مثال کې مشکل دا دی چې زده کوونکي هره ورځ لږ څه ناوخته راځي، په پیل کې زده کوونکي کوښښ کوي چې د ځان څخه دفاع وکړي، خو کله چې ښوونکی په قهر کیږي او له قدرت څخه کار اخلي نو زده کوونکی خفه او مجبور شو چې د ښوونکي امر ومني. زیاتره ښوونکو ته دا طریقه او سلوک د کوچني والي له وخت راهیسې د مور و پلار او یا د ښوونځي د ښوونکو څخه په میراث پاتې شوې وي.

## د دې طريقې اغيزمنې نتيجې :

۱- د دې طريقې څخه په استفادې کولو سره سړی په عاجلو وختونو کې د ير ژر اغيزمنې فيصلې ته رسيږي .

۲- کله چې ډير ژيات خلک موجود وي او د بحث او مذاکرې کولو امکان ډيرلږ وي نو بحث کومې نتيجې ته نه رسيږي ځکه چې په کنه ګونه کې ژيات بحث او مذاکره د مجلس د تيت و پرک کيدو سبب کيږي .

۳- مغلوب کسان بې زړه کيږي او د غالب په مقابل کې کينه او عقده پيدا کوي .

۴- مغلوب ته د مشکل د حل د لارې لټونې موقع او فرصت ډيرلږ وي .

۵- غالب بايد تل ځارنه او کنترول ولري ، که نه نو کله چې پښې شا وي څوک يې بيا د اصولو او قوانينو څه پروا نلري .

۶- غالب شخص د مغلوب د انکشاف او پلان جوړونې خنډ کيږي او مغلوب هميشه خپل ځان غيرمستقل او د نورو پيروحس کوي .

۷- غالب سړونکې څه د ويرې او تهديد پواسطه زده کوونکي د ځان تابع کوي نو په نتيجه کې يې د ګډې همکارۍ روحيه د منځه ځي .

۸- غالب شخص د معقول انتقاد ، علمي تحقيقاتو ، ابتکار او اختراعاتو خنډ کيږي ځکه چې د اڅيزونه د ويرې او اجبار په صورت کې و ده نشي کولای .

۹- د دې طريقې پواسطه ، استعداد لږه و ده کوي او پوره نه غوړيږي .

ځکه چې پدې طریقه روزل شوي شاګردان د کار کولو په وخت کې دومره خوشحال نه وي، کار ئې لږ او ډېرې سهوې او غلطۍ لري.

۱۰- نظم او د سپلین پخپله وده نشي کولای ځکه چې ښوونکی تل قدرت کاروي.

۱۱- د مشکل د حلولو لپاره عادلانه او منطقي د حل لاره نشي پیدا کیدای.

۱۲- غالب شخص ځان ملامت حس کوي.

۱۳- غالب شخص د مسئلې د حل لپاره تل د عادت سره سم د دیکتاتورۍ او خپل قدرت څخه کار اخلي

## د وهمه ډله ښوونکي :-

دوهمه ډله ښوونکي چې د مشکل د پیدا کیدو په بڼه کې تسلیم او د بحث او مذاکرې څخه ډډه کوي او ځان داسې ښکاره کوي چې ګواکې هیڅ شی هم د ده نه مزاحم کیږي، شاګرد ته د غالب شخص په توګه حق ورکوي او ځان مغلوب کنهي.

مثلاً هغه شاګرد چې ټولګي ته لږ څه ناوخته را رسیږي او د جهاد په کارونو مشغول دی، ښوونکی ورته وائې پروا نه کوي هر وخت چې درس ته راورسیدې.

## د دغه ډول ښوونکي نتایج :

د دغه ډول مغلوب ښوونکي د سلوك او تدریس نتایج په لاندې ډول بیانیږي:

انفرادي ژوند لري ، د دوئ ژوند دومره غیر اجتماعي دی چې په سیوه تعمیرکې به د ېر کورونه اوسېږي مګرخپل همسایه به دیوبل سره نه پېژني د دوئ موجودیت فقط په اجتماع کښې دکار کولو یوه اله ګڼل کېږي اوبس برسېره پردې دغه انسانان د ایمان اوعقیدې دلوئ نعمت څخه بې برخې وي.

برعکس په اسلامي هیوادونو کښې ماشومانو ته د ایمان ، صبر ، استقامت او اسلامي اخلاقو درس ورکول کېږي ، مګرمتاسفانه چه درس ورکول ئې زیاتره د انحضرت صلی الله علیه وسلم د وینا مطابق نه دي ، ځکه چې د درس ورکولو په وخت کښې معلم د نرمې اومهربانه روئي او اخلاقوڅخه کار نه اخلي بلکه د ماشومانو په وهلو ټکولو او ربړولو بوخت وي او خپل ځان ته داحق ورکوي چې په ټولګي کښې دزده کوونکو سره عسکري چال چلند وکړي. حال داچې ماشومان ګلان دي او د ګلانو سره په نرم او ملایم ډول تماس نیسئ او که نه نو رژېږي.

برسېره پردې چې یو ښوونکی د نرم اومهربانه مزاج خاوند وي په تدریسي اصولوهم باید وپوهېږي او که چېرې تدریسي اصول ئې خراب وي نو د ښه ښوونکی انتظار ورڅخه نه شي کېدای.

ښوونکي باید ډېر مهربانه وي او خپلو زده کوونکو ته همېشه د پوښتنو کولو موقع ورکړي اوهم زده کوونکي پوښتنو او ګډ بحث ته تشویق کړي. که چېرې ښوونکي تندخویه او سخت مزاجه وي نو شاګردان د پوښتنو ، ډلیز کار اومذاکراتوڅخه ډډه کوي چې دا کار د هلکانو ذهني ودې ته تاوان رسوي او انکشاف نه کوي.

١- سری ژر نتیجې ته رسیږي او ټول هغه عوامل چې د ښوونکي مزاحم کیږي ، په مقابل کې یې کوم عکس العمل نه ښکاره کوي بلکه ورته تسلیمیږي .

٢- مغلوب ښوونکی بې زړه کیږي او د شاګردانو په مقابل کې یې حسد او کینه پیدا کیږي او بالاخره یې د معلمۍ څخه زړه هم توریږي .

٣- په مغلوب ښوونکي باندې شاګردان مسخرې کوي ، او ګډې همکارۍ ته نه حاضریږي . متقابل احترام له منځه ځي ، د ټولګي نظم او دسپلین ګډ وډ کیږي او د ټولګی څخه د ټوکو او مسخروځای جوړیږي .

٤- شاګردان ځانونه دومره آزاد حس کوي چې د انتقاد کولو موقع یې زیاتیږي او د اکار ښوونکي ته ډیر نقصان رسوي .

٥- پدې برخه کې هم غالب شخص ځان ملامت حس کوي ځکه چې د مغلوب نظریات او غوښتنې یې تر پښو لاندې کړي وي .

٦- په دا رنګه ټولګي کې درس ویل ډیر لږ وي او اخلاقي اړخ یې کمزوری کیږي . زیاتره ماشومان د شور او غالمغال نه ډک او دیو څو شاګردانو پواسطه بې نظمه شوی ټولګی یې نه خوښیږي ، او یکې او سیدل ورته د وخت ضیاع ښکاري .

٧- زده کوونکي د ښوونکي احترام نه کوي او ښوونکی د کمزوري په نامه پیژني .

د دوه ؤ پورتنیو طریقو د لوستلو څخه څرګند یږي چې دا دواړه

غلطی دی نوځکه به دا غوره او ښه وي چې د يوې بلې (دريمې) طريقې څخه کار واخستل شي .

## د ريمه طريقه :-

ښوونکی د مشکلاتو په وخت کې داسې طريقه غوره کوي چې غالب او مغلوب پکې نشي ، نه د قدرت څخه کار واخلي او نه اپخپله شاگردانو ته تسليميږي بلکه داکوښښ کوي چې د شاگردانوسره په آرامه فضا کې په نرمه ژبه او ښه سلوك بحث او مذاکره وکړي ، او د خبرو په پای کې داسې د حل لار پيداکړي چې هم ښوونکي او هم شاگرد دواړو ته مناسبه وي ، او د هر يو مقام او حيثيت پکې خوندي پاتې وي. يعني نه سيخ وسوځي او نه کباب . « خير الامور اوسطها » .



# دریم فصل ؛ دوهمه برخه
# تعلیمي روحيات
## د زده کړې لپاره مهم او اساسي اصول

د خدای تعالیٰ په مرسته خپل تصمیم او فیصله پخپل لاس کې ونیسئ!
خدای تعالیٰ (ج)، فرمائي چې: مومنان په کارونو کې پخپل منځ کې مشوره کوي.

**د زده کړې لپاره د کارکولو طریقې:** د دې فصل زیاتره مسئلې په زده کړې پورې مربوطې دي. د زده کړې د پاره ښې لارې چارې یکې په اجمالي ډول لیکل شوي دي. همدا رنګه د کارکولو عمومي پلانونه او نقشې مطرح شوي دي چې انسانانو سره په ورځني ژوند کې ډیر کومک او مرسته کولی شي. د دې کورس د لوستلو په وخت زده کوونکي باید مهمې نقطې په لنډ ډول یادداشت کړئ او بیائې په ورځني ژوند کې په ډیر صبر او حوصله سره په ځان تطبیق کړئ.
خدای تعالیٰ (ج)، فرمائي: "صابر او ثابت قدم اوسئ په خپلو کارونو کې".

د دې کورس په لوستلو سره زیات امکانات پیداکیږي چې سړی خپله وینا او عمل صحیح کړي او د خپل ځان پخپله ښوونکی شي، د کارکولو نوې طریقې یادې کړي او روحي مشکلات او مسایل و پیژني.
په دغه نړۍ کې چې موږ او سیږو د انسانانو ترمنځ ډیرې

شخړې او مشکلات موجود دي او ورځ په ورځ لا پسې زياتيږي. د دوی د شخړو د زياتيدو سبب دا دی چې خپل رزق د حلالې او مشروع لارې څخه په لاس نه راوړي او د مادياتو او اقتدار د لاسته راوړلو لپاره هر فساد، فتنې او ناروا کار ته لاس غزوي.

زموږ پيغمبر(ص) فرمائي: د ټولو ګناهونو منشاء او راس د مال او دنيا غوښتنه ده

د انسانانو د دغو ناروا غوښتنو پواسطه د دوی ترمنځ لاندې ستونزې پيدا کيدای شي:

ډير انسانان شته چې هميشه لپاره په فکر کې يوځه مسايل او خبرې تکراروي او د فکري سينما فلم يې د ځان لپاره چالان کړی وي، همدارنګه ډير انسانان شته چې د يو کار کولو لپاره د اندازې نه زيات وخت مصرفوي. او ځنې انسانان خپل کار په ټاکلي وخت کې په ډير مشکل سره سرته رسوي. ډير انسانان داسې هم شته چې پرځای د دې چې خپل استعداد تمرين او په کار واچوي شکايت ځنې کوي او داسې اقرار کوي چې زه د دې کار استعداد نلرم.

يوه ډله نور انسانان هميشه د تشويش او ويرې سره مخامخ دي او پخپل ځان ډيرلږ اعتماد او باور لري. برسيره پر دې ډير انسانان د زيات کار کولو ارزو لري، مګر برخلاف د دې لږ کار کوي.

د پورتنيو مسئلو حل زموږ لپاره حياتي ارزښت لري نو ځکه ضروري ده چې په خپلو دغو نيمګړتياوو او غلطيو يو ځل بيا فکر وکړو.

عوامل او سببونه ئې ولټوو او داسې طريقې و ټاکو چې د هغو پواسطه خپلې غلطۍ اصلاح کړو.

## سببونه ئې :

د پورتنيو ټولو شيانو سببونه په لاندې ډول سره بيانيږي :

ټول انسانان خپل ژوند دخدای (ج) او د رسول الله (ص) د وينا او احکامو په چوکاټ کې نه تيروي، په هرکار کې د خدای (ج) حضور او رضا په نظر کې نه نيسي. برسيره پردې د کار کولو تخنيک ئې نه دی زده کړی.

بل مهم سبب ئې دادی چې خپل قيمتي وخت په منفي او عبثو شيانو ضايع کوي.

مونږ غواړو چې دلته په خاص ډول د زده کوونکو د ژوند په ضروري شيانو او مسايلو بحث وکړو :

## زده کوونکي څه آرزو لري :

څرنګه کيدای شي چې زده کوونکي دخپلو محدودو استعدادونو او روحي فشارونو سره سره :

الف : په ټولګي کې ښې نمرې واخلي.

ب : د ښوونځي د رسونه په خوښې سره ولولي.

ج : ډير وخت ولري چې په هغې کې دخپلې خوښې او دلچسپۍ کارونه وکړي.

# ګټورې مشورې

پدې برخه کې یوڅو ګټورې مشورې دا دي:

١- خپل راتلونکي هدفونه د راتلونکې اونۍ، میاشتې او کال په نظر کې ونیسئ.

٢- د پر ژر پخپل کار پیل وکړئ او پای ته ئې ورسوئ، هیڅکله دنن ورځې کار بلې ورځې ته مه ځنډوئ.

چې د نن کار دې سبا و ته معطل کړ

اعتبار به پرصبا کونې ترکومه.

٣- بهانې او چل مه جوړوئ. د خپل ځان سره ریښتیني اوسئ.

٤- د خپل ځان د کنترول لپاره همیشه مشق او تمرین وکړئ، مثلاً لږ تر لږه دورځې یوځل د یوشي څخه صرف نظر کول یا یوه ورځ د یو خسته کن کار په مقابل کې یو عاجل او زړور تصمیم نیول او یا د ډیرو کارونو او مجلسونو درلودل چې سړی ورڅخه په تشویش او ویره کې وي.

٥- اعتماد پخپل ځان ولرئ، زړور او قاطع اوسئ.

خدای پاک (ج)، په قرآنکریم کې فرمائي: ای مؤمنانو! مخکې د کارکولو څخه فکر وکړئ، او کله موچې عزم وکړ او بیا توکل په خدای وکړئ او کافي دی همدغه الله ستاسو د پاره.

٦- د نورو په ګټه خپل کارونه د زړه د اخلاص سره اجراء کړئ. په دې سره داخلي خوشحالي پیدا کیږي.

رسول الله (ص)، فرمائي: مسلمان باید د بل مسلمان لپاره داسې

کومکي شي لکه یوه خښته چې د بلې لپاره په دیوال کې کومکي واقع کیږي.

۷ - په تازه هواکې ، شعوري آرامه ساه راښکل ، متحرک خواص غوږ کول ، حمد ، نعتونه او ترانې ویل ، ښه زمینه د ښو استعدادو برابروي. دخدای(ج) ، ذکر روح بشپړوي.

۸ - صبر د ذکاوت څخه زیات دی. خدای پاک(ج) ، په قرانکریم کې څوځایه مسلمانانو ته د صبر کولو توصیه کوي. رښتیا ده چې صبر د ډیرو مرضونو دوا ده.

۹ - کورنۍ وظیفې همیشه لپاره د یاداشت په یوه کتابچه کې ولیکئ.

۱۰ - د یوه ملګري سره ګډکار وکړئ ، ځکه چې دوه کسان په ګډه ډیر کارکولی شي او په ضمن کې خپل معلومات او پوهه هم تخمینولی شي. د اسلام په مقدس دین کې همیشه لپاره مسلمانانو ته د اجتماعي اوګډ ژوند توصیه کیږي. مطلب د مدرسې ، ښوونځي او درس لوستلو څخه دا دی چې سړی راتلونکي ژوند ته تیاری ونیسي.

## د ښوونځي او مدرسې لوستلو مهم هدف :

تاسو باید یو شاګرد دخاص هدف لپاره تربیه کړئ. تر ټولو مهم هدف مو باید داوي چې زده کوونکی خدای تعالیٰ وپیژني او د الله(ج) په وحدانیت او د محمد(ص) ، په رسالت ایمان ولري ، او الهي احکام بخپل ژوندکې پرځان تطبیق کړي. په ژوندکې بیا صابر وي ، خپل ځان بخپله کنترول کړي او کوښښ وکړي چې خپل مشکلات بخپله حل کړي او د نورو مسلمانانو د سهوو او خطاوو په مقابل کې د عفوې

څخه کار واخلي .

د خپلې ارادې سره سم هدف ته د رسید و په خاطر دځینوشیانو څخه تیر شي (گذشت وکړي) .

مدرسه او ښوونځي زده کوونکي دې سره عادت او روږدي کوي چې خپل و رځنی مکلفیت په ټاکلي وخت پای ته و رسوي ( مگر په دریمه برخه کې ډیر زده کوونکي دې ته نه کمال کیږي چې خپل کارونه په خپل وخت سر ته و رسوي ) .

یوه مهمه او لویه برخه د تعلیم کولو داده چې دخپل ځان لپاره په ژوندکې ټولو ښوونکی شي اوځان عادت کړي .

مثلاً فوري دخستنه کن او عبثو شیانو څخه لاس اخستل، همدارنګه په ټاکلي وخت د بازار نه د سودا راوړل، ښوونځي ته تلل، ټول وخت کرنه او کرکول جهادوغیره د پلان له مخې سر ته رسول او داسې نور .

## د کارکوونکي موقف د کار کولو په وخت کې

**الف :-** کوم کار چې پرکولوئې مجبور یئ باید په دلچسپی سره ئې پای ته ورسوئ . که چیرې د کار کولو په وخت کې دخوشحالی او دلچسپی موقف ځانته اختیار کړئ نو انشاء الله چې نتیجه به ئې دا شیان وي :

په اسانی سره کار پای ته رسیږي ، د ډیر وخت لپاره په مغز کې پاتې کیږي ، انسان پرې ښه پو هیږي .

هر هغه څوک چې په مینه او علاقه سره خپل مشکلات حلوي، خپلې

د ندې سر ته رسوي، په وخت د کار کې خوشحالي ښکاره او په زړورتیا جرئت او عقل سره خپل کار پای ته رسوي.

داسې زده کوونکي په ښوونځي کې لنړې ستونزې لري او خوشحال وي. په لنډه ول ویلای شو چې: د یو زده کوونکي مثبت موقف نیول د کار کولو په وخت کې دخدای(ج) په مرسته دده دخوشحالۍ او کامیابۍ سبب کیږي. ښې او اعلی نمرې اخلي او هم د ښه روغتیا څښتن وي، د ښوونځي دوره او وخت یې نیکمرغه او خوشحاله تیریږي.

بر عکس: منفي موقف نیول د کار کولو په وخت کې هر نوعه مشکلات منځ ته راوړي.

ب: د کار د پیل کولو په وخت کې یو څو نور مهم اساسي اصول:

۱- هر کار د الله(ج) په نامه شروع کړئ او ښه نیت ولرئ.

۲- د کار ټولې مهمې منطقي برخې او نقطې مشخصې کړئ او د کاغذ پر مخ ترې پروګرام جوړ کړئ.

۳- ټول کومکي مواد چې د کار په وخت کې ضروري دي تهیه او تیار کړئ، د امکان په صورت کې د کار کولو سریع او کړندی طریقه اختیار کړئ.

۴- کوم کار مو چې پیل کړ نیمګړی یې مه پریږدئ بلکه په بشپړ ډول یې پای ته ورسوئ، بل وخت ته یې مه ځنډوئ.

۵- د کار د پای ته رسولو لپاره وخت باید وټاکئ او کوښښ وکړئ چې په ټاکلي وخت کې خپل کار پای ته ورسوئ.

٦ - هر کارچې کوئ هغه په اساسي د ولږ ، ژر په بشپړه توګه اجراء کړئ . ټول نیمايي او نیمګړي کارونه عملي ګول صحیح نه دي بلکه تشویشي او شیطاني جنبه لري .

٧ - یوه برخه د کار د ډیر اوږد وخت له پاره ونه ځنډوئ ، لومړي همدغه کار پای ته ورسوئ بیا بل کار شروع کړئ .

٨ - هر کار موچې پای ته ورسوو یوځل یې بیا کنټرول کړئ او هغه پروګرام چې په اول کښې مولیکلی ؤد هغه سره یې مقایسه کړئ ترڅو چې د کار نواقص او ګټې ارزیابي شي .

٩ - یوځل بیا فکر وکړئ چې کومه اشتباه او تخنیکي غلطي پکې شوې ده او هغه د ځان سره یادداشت کړئ .

١٠ - د کار ترکولو وروسته خپل بریالیتوبونه ، ځانګړي فعالیتونه ، مشکلې نقطې په کتابچه کې د ځان سره یادداشت کړئ .

١١ - د کار نوعه د ځان سره یادداشت کړئ .

١٢ - خپلې قواوې او انرژي د ډیرو مختلفو کارونو د پاره مه استعمالوئ بلکه په یوه خاصه اندازه او معیار سره ځنی مجلې او اخبارونه مطالعه کړئ . او معلومات نه باید واورئ ، ضروري نه ده چې سړی باید هرشي لوستلی ، اوریدلی او لیدلی وی ، دا هم ضروري نه ده چې سړی باید په هرشي او هرکار پوه وی .

١٣ - هغه تاوتریخوالی چې د ناثو پواسطه ستا په وجود کې راپیدا کیږي ځان ځنې و ژغورئ نو بیا به توګه کولی شي چې خپل درس په اسانی سره یاد کړئ .

## دریم : څه شی درس ورکول په کار دی؟

همدارنګه ښوونکي باید په دې پوه وي چې زده کوونکي د عمر په لحاظ مختلفې غوښتنې لري او کوم ټولګي ته چې درس ورکوي باید د هغوئ د غوښتنو څخه خبر وي. ښوونکی باید پردې هم پوه وي چې ټول زده کوونکي یو شان استعداد نه لري ، په یو ټولګي کښې همیشه ضعیف ، او سط او ډیر ښه ذکي زده کوونکی لیدل کیږي ، ځینی زده کوونکي په یو مضمون کښې ښه نه پوهیږي مګر په بل مضمون کښې ښه وي نو ځکه ښوونکي ته په کار دي چې د لټو او ضعیفو ماشومانو سره د درس په وخت کښې ډیر کار وکړي.

ښوونکي باید د ټولګي زده کوونکي په څو ډلو ووېشي چې هره ډله ئې د تنبلو، متوسطو او ښه اوتکړه زده کوونکو څخه جوړه وي. هره ډله دې ګډه کار وکړي او خپل مشکلات دې د ښوونکی د نظارت لاندې حل کړي.

## څلورم : کله درس ورکول په کار دي :

یو ښوونکی باید وپوهیږي چې ماشومان کله درس ته تیار دي لکه چې که څمکه په خپل وخت سره وکرله شي ښه حاصل ورکوي ، انسان هم په یو ټاکلي اوخاص وخت کښې ښه زده کړه کولې شي یعنې ښوونکي باید د یو زده کوونکي د روحي اوجسمي انکشاف مطابق درس ورکړي . مثلاً : د څلورم ټولګي د نصاب دیا دولو دپاره باید د یوزده کوونکي عمر په او سط ډول تقریبًا لس کلونو وي اوروحي ، جسمي او ذهني تکامل او وده

۱۴ - کله چې یوه هدف ته رسیدل غواړئ باید د دغه کار دکیدو باور او یقین پرځان ولرئ. او په کولو کې ئې دخدای (ج) مرسته وغواړئ.

۱۵ - کله چې د یر کارونه ولرئ په دوو برخو ئې وویشئ، مهم او غیر مهم.

۱۶ - هیڅ وخت هدف ته د رسیدو څخه مخکې د خپل تصمیم څخه و نه گرځئ.

**ج : هغه طریقې چې د هغو پواسطه سړی متمرکز کیږي :**

خفگان او پریشانې چې د ښوونځي دکورنۍ وظیفې، د ښوونکي د بد چال چلند له امله او هم په کور او نوروځایو کې پیدا کیږي، د یو انسان د ویرې او ترس سبب گرځي او دکار کولو په وخت کې په کافي اندازه انرژي نلري او نشي متمرکز کیدای. خپل وظایف د یوې ورځې څخه بلې ته ځنډ وي.

**مهمه مشوره :-** د دې د پاره چې بیا دکارکولو قوه او انرژي پیدا کړئ نو لاندې نقطې په نظر کې ونیسئ:

۱- په خپل ځان چټپله امر وکړئ او سمدلاسه په کار کولو پیل وکړئ.

۲- بدني حرکات او سپورت باید وکړئ، کرکه خلاصه کړئ او شوره او آرامه ساه وکاږئ. د تفریح او دمې لپاره وخت وټاکئ، کله چې د دمې کولو وخت شو خپل کار وځنډوئ او دمه وکړئ.

۳- د خپل ځان لپاره خاص مقررات وضع کړئ. مثلاً په هرو لسو دقیقو کې باید دوه صفحې ولیکم. بیا څنگ شم او خپله ستوماني وکاږم.

۴ - همیشه لپاره د هغو مسایلو څخه چې په مغزکې مو اوري او ژاوري او ستاسو مزاحم کیږي ځان خلاص او په مقابل کې يې مبارزه وکړئ.

۵ - کوښښ وکړئ چې د کار کولو په وخت کې د نورو خلکو خبرو ته متوجه نشئ. د کار په وخت کې تل کوښښ وکړئ چه خپل موقیعت ته تغیر ورکړئ، د یوې خوا څخه بلې خوا ته مخ وګرځوئ، بلې لورې ته کښینئ یا ودریږئ او داسې نور.

۶ - کله کله د کار کولو ځای تغیر کړئ مثلاً بل اطاق ته لاړ شئ. ملګري ته ورشئ او داسې نور.

۷ - شیریني، چای، کیک، شربت همیشه هغه وخت خورئ او څښئ چې د کار یوه برخه مو سرته رسولې وي.

۸ - د کار کولو فعاله فضا دوباره ځان ته جوړه کړئ.

۹ - د ډیر او ږد وخت لپاره پر عین موضوع کار مکوئ ځکه چې سر ی ستړی کوي. د امکان په صورت کې مختلف شیان یو په بل پسې ولولئ.

## د کار په وخت کې د نه متمرکز کیدو سببونه:

په کورکښې د مور او پلار، ورنو، خویندو او په ښوونځي کې د همزولو سره جنګ، دعوه، تاو تریخوالی او برسیره پردې ویره او ترس، غالمغال او بیروبار، غم او ښادي، روحي تکلیفونه او داسې نور د کارکولو په وخت کې د یو انسان د فکر او حواسو نه متمرکیدو سبب کیږي.

## د هیجاني کیدو ضررونه او د هغې تداوي:

د هیجاني کیدو په واسطه د سړي وخت او قوه ضایع کیږي او روغتیا ته یې ضرر رسیږي. هیجاني کیدل او غوسه کول نه غوسه کوونکي ته څه ګټه رسوي او نه بل څوك ترې ګټه اخستی شي بلکه د غوسه کوونکي استعداد ته ضرر رسوي.

کله چې یوه بنه مساعده موقع پیدا شوه هیجاني کیدو او غوسې ته ووایه چې زه چپ والی اختیاروم او چپ پاتې کیږم، زه نور مهم کارونه لرم نو ځکه باید هیجاني نشم.

په هره اندازه چې د نورو په لخواصونو وحیلتو او خبرو بنه پوه شوې په همغه اندازه ستاسو هیجاني کیدل او غوسه د هغوی دخواصو په مقابل کې هم کمیږي.

ای انسانه! مه هیجاني کیږه د خوشحالۍ حس ځانته پیدا کړه.

په دیرو وروشیانو دومره مه هیجاني کیږه چې د مسنفي احساسات تو څخه کار واخلې، دیوالو ید وخت لپاره په هیجاني آواز په غوسې سره خبرې کول ستاسې روغتیا او جسم ته ضرر رسوي.

داسې فکر د ځان سره وکړئ چې زه باید د هر تشویق کوونکي شي په مقابل کې هیجاني نشم بلکه په هره موقع کې به د وجود غړي آرام پریږدم او خپل وجود باید کنترول کړم، په دې ترتیب سره د ځان کولو استعداد او قوه بیرته لاس ته راوړلی شي.

د ځان سره د هغو فکرونو د تکرار و لو څخه چې منفي او ترخې

خاطرې ورځنۍ لرې پرهيز او منع وکړئ ځکه چې ستاسو د تعليم کولو مزاحم کيږي. د يو مثبت اوخوشحاله موقعيت پيشنهاد د ځان سره وکړئ د کوم پواسطه چې د وبارۀ دلوستلو شوق او د متمرکز کيدو قوه پيداکيږي.

**کورني کار :-** مخکې له دې چې قلم راواخلئ اوڅه وليکئ د کارکولو په برخه کې دځان سره لنډ فکراو سوچ وکړئ. هميشه د بارۀ دکارکولو په وخت کې لنډه اوکوتاه دمه او تفريح کول ښه دي نسبت اوږدې دمې کولوته، ځکه چې په اوږده دمه کولوکې امکان ددې شته چې هغه شوق چې دکارکولو په وخت کې لرې لږشي اويا د منځه ولاړشي. برسيره پردې تکرارول دعين موضوع ډيره ګټه لري.

**ښه موقع نيول :** غلط کيناستل سبب دخستګۍ کيږي اوداوږد وخت لپارۀ سرې ځان په کافي اندازۀ نشي متمرکزکولی. کيدای شي چې دايمي غلط کيناستل د ناروغۍ سبب وګرځي.

دکيناستلو په وخت کې بايد ښې هوارې په ځمکه کښيږدئ شمزۍ (د ملا تير) مستقيم ونيسئ اوسترګې دکاغذڅخه په کافي اندازۀ لرې کړئ. پس له څه وختنه دکيناستلوځنل موقيعت ته تغير ورکړئ، جګ شئ، ودريږئ يا ځغلئ، ډيره تيزه بريښنيد ونکي رڼا سترګو او کاغذ ته پرې نږدئ.

په ابتدائي ښوونځي کې که ستاسی ښه شرايط نه وي موجوديا څوکۍ د ماشومانو د هډوکو د ودې دخصوصياتو سره هم آهنګي

ونلري نو په درس کې نا وړه تاثیر کوي .

غالمغال او غیرمنظم شور او چغې زمونږ عصبي سیستم ته زیان رسوي نوځکه ورځخه ځان وساتئ .

## نظم او دسپلین

هغه تاثیرات لرې کول چې مزاحمت ایجادوي ، دنظم او دسپلین سبب کیږي. نظم اودسپلین دکارکولو په ځای کښې دېر کومښش ، وخت اوعصبي کېدوسپما کوي. ټول شیان چې دکار کولو په وخت کې استعمالیږي ، باید ډیر واضح ، ښکاره او دځان سره نژدې وي ،

ټول هغه شیان چې ستاسو مزاحم کیږي ، لرې ئې کښیږدئ ، ټول لوستل شوي ، لیکل شوي کاغذ ونه او مستعمل شیان داسې ښه ترتیب کړئ چې هر وخت مو په کار وي باید ژر ئې پیدا کړئ .

د مثال په ډول خپل ټول لیکونه چې خلکو د رته را ستولي دي د هغوی نومونه پرې په غټ خط ولیکئ او په یو کارتن کې ئې کښیږدئ. کارتن په دوو برخو هم ویشلی شي چه په یوې خواکې ئې یو شی او په بلې خوا کې ئې بل شی کښیږدئ . د خپل میزخانې هم په څو برخو ویشلی شي ، په هرې برخې ئې نوم ولیکئ او د نوم مطابق شیان پکې په منظم ډول کښیږدئ.

## ژده کړه

د روانشناسۍ د علم له مخې د تجربې او تکرار سره سم دانسان په کړو وړو او سلوک کې اساسي تغیر ته ژده کړه وائي یا په بل

عبارت سره داسې هم و یلای شو چې د تجربو په اساس د کړ داراو عمل اصلاح او کمې زیاتی ته زده کړه وایي.

## څه شی د زده کړې مانع کیږي ؟

هر سړی دې د هغو شیانو نمونه د ځان سره یاداشت کړي چې د ده د زده کړې مزاحم کیږي. مزاحم کیدل د محلې، راډیو، د موټرو د غږو بر آوازونو څخه او د میلمه، ټیلفون او فکرکولو څخه.

برسیره پردې تنبلي، آرام ژوندکول، غمجن کیدل، پریشانه کیدل او نور ناوړه عادتونه او ویره د مختلفو شیانو څخه هم د زده کړې مزاحم کیږي. برسیره پردې دیو شي په برخه کې سطحي لیکنه، سطحي فکر کول، ژر د یوې خبرې هیریدل، زړورتوب د لاسه ورکول او بې زړه کیدل، کورني مشکلات د زړلودل او اعتماد د پرخپل ځان نه لرل تول د غه شیان د زده کړې مانع کیږي.

پوړتني مشکلات کولی شئ چې په لاندینیو طریقو سره کم او حل کړئ او خپلو عیبونو او نواقصو ته متوجه شئ.

هیڅکله هم د پوښتنه کوونکي، بې کټې، بې معنی او بې تمیزه کار په مقابل کې کنځل او بد الفاظ مه استعمالوئ څکه چې نبي کریم (ص) مونږ د بدو الفاظو د ویلو څخه منع کړي یو، همدارنګه دا یو غلط عمل او پیش نهاد دی چې ستاسو روغتیا ته ضرر رسوي. برسیره پر دې په ټولګې کې یو بل زده کوونکي یا ښوونکي ته بد الفاظ استعمالول څه کومک تا سره نه کوي بلکه منفي ذهنیت د رته پیدا کوي او دا ذهنیت

به د ربا ملدی تبوج او پیتهی وي.

## دکوم ځای څخه پوهه اخستل کیږي؟

زیاده کوونکي اکثره په ځپلو درسونو او ازموینه بوخت وي او
نورو او معلوماتو ته یې د ومره نه ګرځي

مور، پلار، کورنۍ، ټولنه، جماعت، قرآن کریم، احادیث،
همزولي، ښوونکي د مور او پلار او د کورنۍ د غړو ولسپېلک او د
معلوماتو اندازه، د مطالعې عادت او کورنۍ کتابخانه، د مدرسې
او ښوونځي پخواني تو توته او کتابونه د پوهې او معلوماتو حاصلولو
دپاره مهم او غوره منابع دي.

د لغتنامو، مسلکي کتابونو او مسلکي یکسانو، مجلو، اخبارونو،
سینیما، رو تو، کنفرانسونو، علمي موسسو او د راډیو د ښوونې او
روزنې له پروګرامونو څخه هم پوهه حاصلیږي. برسیره پردې یوې
نتیجې ته د سفر کولو په نرخ کې د هغې شیې او د هغې د اوسیدونکو
په برخه کې هم پوهه او معلومات حاصلیدای شي.

مخکې له بیدید و څخه دسبالپاره په لاندې ډول فکر وکړئ:

څرنګه کولای شئ چې په فارغ وخت کې د ځپل ذوق او علاقې ور
شیان مطالعه کړئ؟

څرنګه کولای شئ ځپل وخت او انرژي پس انداز کړئ؟ په کوم
ځای کې مو وخت او انرژي بیځایه مصرفیږي او حتی ضرر در ته
رسوي؟

دخپل جسم او وجود په داخلي آرامی او مثبت فکرکولوکې فکر وکړئ، خپل فکراو ژوند د چټلو او عبثو شيانو څخه پاك کړئ. هيڅ وخت بد الفاظ مه استعمالوئ او کنځل مه کوئ ځکه چې د بدو الفاظواو کنځلو څخه مونږ آنحضرت (ص) منع کړي يو، که وغواړي چې په آرام سره خوب وکړئ، خپله د فکرونو ښرندهو ودروئ.

## پخپله دځان سره پيښنها دکول او څه ويل

داوتو بوتواوچتي فکرونو دلرې کولو لپاره او په ځان کې د ښه فکر د پيدا کولو په خاطر بايد يوڅوجملې دځان سره انتخاب کړئ او مخکې له بيد يدوڅخه يې (۲۰) يا (۳۰) دقيقې دځان سره ولولئ او بيا بيده شئ. يو فرانسوي عالم په دې طريقه ډېرکونه انسانان تداوي کړي دي. دجملو انتخاب پخپله کولای شئ. مثلاً زه آرام يم، .... ! يا زه ښه يم، زه ښه يم، ..... هر ډول جملې چې تاسو يې وغواړئ تاکلی شئ معنی او مفهوم يې دومره مهم نه دی. دجملو ويل د (۲۰) نه تر (۳۰) دقيقو پورې ستاسو د داخلي ځراتو او تعاملاتو تسکين حاصلوي.

ځنې کسان د ديني لارې او طريقې ځانته غوره کوي او د هغو په برکت سره داخلي سکون او اطمنان حاصلوي او يو مثبت روحي او عقلي انکشاف يې پيداکيږي. مثلاً د بيديدو په وخت کې ايت الکرسي يا بل کوم سورة لولي. ځکه چې په قرآن شريف کښې د صحت، اطمنان او تسکين په برخه کښې نور آيتونه هم شته.

## د زده کوونکو ترمنځ ګډ کار کول

دکورنۍ وظیفې په حلولو کې یو د بل سره کومک او مرسته کول، یو درس په ګډه تکرارول، ازموینې ته په ګډه تیاری نیول او یومضمون په ګډه یا دول د زده کوونکو ترمنځ دګډ کارکولو نمونې او مثالونه دي. ګډ کارکول خوشحالي او ملګرتیا منځ ته راوړي. مسابقه، مقتابل کنترول، انتقاد او اصلاح په ګډ کارکولو کې ضروري دي.

په ټولګي کې زده کوونکي متقابلو مرستو ته ضرورت لري مثلاً یو زده کوونکی په تفسیر شریف ښه پوهیږي مګر بل همزولی ئې په ریاضي کې ښه استعداد لري، پدې صورت کې دواړه په ګډه خپل مشکلات حلولی شي.

کله کله کیدای شي چې پس له تدریسي وخته یو ګروپ زده کوونکي په ګډه سره کار وکړي او خپلو ضعیفو او کمزورو ملګرو سره مرسته وکړي.

## زده کړه څه ته وائي ؟

زده کړه د معلوماتو، پوهې، روش او حرکاتو د جمع کولو څخه عبارت دی.

## مطلب د زده کړې څخه څه دی ؟

مطلب د زده کړې څخه دا دی چې خدای (ج)، وپیژنو او دخپلو علمي معلوماتو څخه ښه او شر په خپل ځای او موقع کې جا بیزه کښته واخلو.

ئې هم د لس کلن ماشوم په شان وي.

یوښوونکی اول باید زده کوونکو ته د درس ورکولو زمینه برابره کړي او بیا درس ورکړي لکه څرنګه چې یو ځمکه اول باید د ګیاڅخه پاکه او ښه قلبه شي او بیا په تاکلی وخت د کرلو له پاره او به شي نو وروسته له هغې به کښت ، زرغونه او په خپل وخت به حاصل ورکړي.

په همدې ډول زده کوونکي باید مخکی له شروع د درس څخه درس ویلو ته تیار وي ، په دې برخه کښې هرماشوم سره په نرمه لهجه خبرې کول د پرمهم رول لوبولې شي ترڅو د دوئ د پخوانیو معلوماتو اندازه وټاکل شي او د دوئ د اقتصادي ستونزو د لرې کولو د پاره باید د دولت او خیریه موسسو څخه مرسته وغوښتل شي.

# د روحیاتو یا د روانشناسی د علم تعریف

د روح پرحقیقي معنیٰ ، ماهیت او مفهوم انسان نه پوهېږي او په راتلونکی کښې به هم پرې پوه نه شي څکه چې خدای جل جلاله په قرانکریم کښې فرمائي :

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَمَا اُوْتِيْتُمْ مِنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلاً ط :

ترجمه : او دوئ پوښتنه کوي چې روح څه شی دی؟ (ای پیغمبر ص) ته ورته ووایه چې روح د الله تعالیٰ یو امر دی او نه دی درکړل شوي

څوك چې په وړوكتوب كې د يره زده كړه وكړي نو استعداد او ظرفيت يې د نورو مغلقو او نوو شيانو له پاره په راتلونكي ژوند كې نور هم زيا تيږي ، د معلوماتو ساحه يې د ژوند په مختلفو اړخونو كې پراخيږي او په راتلونكي ژوند كې زيات ملكري پيداكوي مګر په ځنو وختونو كې متاسفانه چې سرچپه نتيجه وركوي.

## شعوري او غيرشعوري زده كړه

مثلاً متلونه او دلغاتو ذخيره د يوې ژبې چې په غيرشعوري ډول په محيط ،كوڅو او بازاركې او ريدل كيږي يو څه زده كړه وړخخه كيږي .

شعوري زده كړه چې د يو نظم او د سپلين لاندې په ټاكلي وخت كې صورت نيسي مثلاً د ښوونځي ، مدرسې ، پوهنتون او كورسونو د رسونه او داسې نور .

د زده كړې معيار د يو زده كوونكي د بل سره فرق كوي مثلاً ژر يا ديدل او پوهيدل په يو درس ، ژور فكركول په موضوع كې ، د موضوع مقدار او اندازه ، واضح او روښانه پوهيدل ،دموضوع حفظ كول او هغه نه هيرول دا ټول د يو زده كوونكي په خواصو ، ذكاوت او سليقې پورې مربوط دي.

همدا رنګه برقي ،صوتي او ماشيني زده كړې هم په نړۍ كې رواج لري.

د يو مضمون د يا دولو په وخت كې كه امكان ولري موضوع په

لوړ آواز سره ولولئ، مشکلې نقطې ئې دځان سره څوکرتې یاداشت او وروسته ئې څو واري تکرار کړئ. درس د همیشه لپاره دیوې خواځخه په ترتیب سره مه تکراروئ بلکه ترتیب دلوستلو ته ئې تغیر ورکړئ. د غیر مورنۍ ژبې دلغاتو ذخیره باید همیشه تکرار کړئ.

ځنې خلک حنپل ماشومان د درس وئیلو او ښو نمرو احنستلوته د تحفې ورکولو، بایسکل احنستلو او داسې نورو شیانو پواسطه تحریکوي چې فقط موقتي تاثیرلري که مورد نظر شی نه وي نو درس نه لولي.

ښه به داوي چې زده کوونکی پخپله متحرک شي او ځان ته د زده کړې لپاره یوه غوره او مناسبه لار و ټاکي. ځنې زده کوونکي داریږي چې نتیجه به ورنکړي. مثلاً ښې نمرې به په ازموینه کې ونلري. ډاکټرۍ او ماسترۍ به وانخلي نوځکه د یرې هلې ځلې د زده کړې په وخت کې کوي.

د یو زده کوونکي بریالیتوب او ناکامي د هغه د ښو اوبدو عاداتو اوخواصو پورې مربوط دي.

کوښښ وکړئ چې حنپل ښه او بد خواص و پیژنئ او وروسته د تشخیص ځخه حنپل بد خواص مره کړئ.

# د پوهې استعمال

کوم شی چې زده شو او په ژوندکې په عملي ډول استعمال شو هغه ښه یا دیږي او بیا د سرې ځخه ژر نه هیریږي. که چیرې یو سړی د پښتو ژبې د زده کړې لپاره ښې او بریالۍ لارې چارې پیدا کړي، کولی شي چې له دې طریقو ځخه د درې ژبې په زده کره

کې هم کته واخلي.

# د زده کړې یو څو عمومي قاعدې

په ښه او منظم ډول تعلیم کول نه یوازې نظري فکر کول دي بلکه خپلې زده کړې ته عملي جامه اغوستل د زده کړې مهم ټکی دی. بر سیره پردې دخبرو او زده کړې په وخت کې باید مقابل سړی په نظر کې ونیول شي او وپېژندل شي. څه شی دی چې زده کړې وي د امکان په صورت کې یې عملي کړئ.

په لاره او د سفر کولو په وخت کې کولی شئ چې خپل د تاریخ، جغرافیې او بیالوژي معلوماتو ته هم عملي بڼه ورکړئ. په ریاضي او فزیک کې پخپله مثالونه جوړ او حل کړئ پدې ترتیب امکان لري ژوره زده کړه ترلاسه کړئ.

## هغه عوامل چې په زده کړه کې مؤثر دي

۱- **عمر**: د درس اندازه، سرعت او ښه یا دول د انسان د عمر سره رابطه لري.

د درس د زده کړې لپاره ښه او مساعد وخت د (۱۵) کلونو څخه تر (۲۵) کلونو پورې تاکل شوی دی.

۲- **ذکاوت**: په عمومي ډول د درس د اخستلو استعداد ته ذکاوت وائي چې یو انسان ژر یا په قراره سطحي یا عمیق پر یو شي پوهیږي. ذکاوت د ژوند په عملي ډګر کې هم ډیر مهم دی.

۳- **تشویقول**: په درس یا دولو کې تشویق یو څه کته لري،

همیشه لپاره واړه قدمونه اخستل او لږ لږ وړاندې تلل ډیر مهم دي.

**۴- کورنۍ تجربه لرل:** مثلاً د یو زده کوونکي پلار دوکاندار، قاضي، ښوونکی، نجار یا دکوم بل کسب خاوند دی. چې د خپل کسب ځخه په کورکې غږیږي او د هغه اولاد یې ویني، اوري او عملي کوي.

هغه زده کوونکی چې پخپله عملي یو شی لولي، ګوري او تجربه یې کوي په ډیره اسانۍ سره یې زده کړه کوي.

**۵- پخپل ځان اعتماد او تکیه کول:** واړه واړه ګامونه اخستل او هغه په ښه ډول سرته رسول پخپل ځان اعتماد او باور زیاتوي.

## زمونږ حافظه

حافظه هغه استعداد دی چې زده کړي او لیدلي شیان ساتي، دوباره یې پیژني او د ضرورت په وخت کې یې بیرته را برسیره کوي.

هغه شیان چې یوه دفعه یاد شوه د سړي ځخه تیښته نکوي بلکه په یاد کې یې لږ والی راځي، او ورکیږي او د حافظې په ژوره کنده کې ډوبیږي.



## د دې لپاره چې زده کړي شيان موهيرنشي په لاندې ترتيب زده کړه وکړئ :

هيڅکله په تلوار او عجله يوشی مه يادوئ او زده کړې ته ئې مه بې حوصلې او لربيسن کيږئ. په بشپړ شعور او عقل يوشی ولولئ او فکرپکې وکړئ. نوی او دجريان لاندې چارې په پوره آرامۍ سره حافظې ته وسپارئ. پدې ترتيب سره زده کړه په حافظه کې ښه او اوږده پاتې کيږي.

هغه کتابونه او کتابچې چې لوستلي مو دي او ډير وخت کيږي چې بندې کړي مو دي يوځل ئې بيا راواخلئ ترنظر ئې تيرکړئ ځکه لدې چې شيان مو ښيماتي د ياده ووځي بايد په تاکلي وخت ئې تکرار کړئ. څه وخت وروسته ئې بيا تکرار کړئ.

هغه شيان چې يا دول ئې ډيرمشکل دي او يا هر وخت پکار يږي د کاغذ پرمخ يا داشت کړئ او دخپل کارځای ته ئې نژدې ځوړند کړئ.



## څه شی د زده کړې مانع کرځي او حافظې ته صدمه رسوي؟

هیجاني کیدل او مزاحم کیدل دځنو شیانو او دلچسپیو پواسطه، ویره د پوښتنې کولو او ازموینې څخه، د یو مضمون یا ښوونکي سره مینه نه درلودل، پرعین موضوع دځنې توان او قدرت څخه زیات کارکول، ځان کم حس کول (مثلاً وایي حافظه مې ډېره کمزورې ده) او داسې نور شیان د زده کړې مانع کرځي او حافظې ته تاوان رسوي.

بې معنی شیان ژر هیریږي، هغه موضوعات چې په ورځني ژوند کې يې د تطبیق امکانات نه وي هم ژر هیریږي. نظري زده کړه باید عملي شي.

# دوخت لپاره پلان

د وخت څخه باید په صحیح توګه کته واخستل شي خصوصاً په هغه وخت کې چې ازموینه، ډیرکارونه او ډیر تمرینونه په منځ کې ولري. د وخت- لپاره هغه وخت پلان جوړول ډیرضروري دي چې د وخت لږوالی حس کیږي. مثلاً که یو زده کوونکی درې هفتې د ژمي رخصتي ولري نو يوه اونۍ دې د ښوونځي د کارونو لپاره ورکړي او په نورو دوه هفتو کې هرسهار نیم ساعت ځنې هغه مضمون تکرار کړي چې ځان پکې کمزوری بولي او نور وخت دې د ځنې استراحت او هواخوړې لپاره وقف کړي.

دامتحان څخه مخکې وخت باید داسې پلان شي چې په هغه کې دازموینې لپاره پوره تیاری ونیول شي. دازموینې د شروع کیدو د مخه هفته باید په مهال ویش کې خالي وي، په خالي هفته کې هغه کارونه

کولی شي کوم چې ناچاپي پېښېږي.

د ازموینې تر مخه په لاندې ډول مهالویش جوړولی شي:

| وخت | دوشنبه | سه شنبه | چهارشنبه |
|---|---|---|---|
| 7:00 — 8:30 | قرآنکریم | قرآنکریم | 〃 |
| 9:00 —10:00 | عربي | عربي | 〃 |
| 10:30 —11:00 | رياضي | رياضي | 〃 |
| 11:00 —12:15 | لسان | لسان | 〃 |
| 13:30 — 15:00 | تاریخ | تاریخ | 〃 |
| 16:00 — 17:00 | ګرامر | جغرافیه | 〃 |

د وخت پلان باید داسې جوړ شوی وي چې په منځ کې خالیګاوې ولري ځکه کوم ضروري او ناڅاپي شیان چې پیښېږي باید پدې خالي وخت کې یې اجراء کړئ. د زده کړې لپاره وخت باید داسې وټاکو چې په هغې کې ډول ډول مختلفې سرګرمۍ وشي. تحریري، تقریري، نقلول، فکرکول، لوستل میخانیک حافظې ته سپارل، تمرینول. نو پدې ترتیب کولای شئ چې ستړیا، نه متمرکز کیدل او بې زړه توب له منځه یوسئ. په دې ډول کارکول استعدا د ته انکشاف اووده ورکوي او د ... وخت سپما کیږي.

## ورځنی پلان

د یوې ورځې وخت لپاره هم پلان جوړولی شئ. ډیر وخت داسې کیږي چې ورځ تیره شي مګر د ورځې په پای کې سړی خفه وي ځکه

چې کار یې نه وي کړی او خپل ځان بخپله ملامته کوي.

که چیرې سړی د هرې ورځې لپاره منظم پروګرام ولري نو مایوسي او خفګان یې له منځه ځي.

## ترغرمې وروسته پلان

13:45 — 13:00 ...... د تاریخ اوجغرافي تکرار.

14:15 — 14:00 ...... دلسانو د لغاتو تکرار

16:00 — 14:45 ...... د ریاضي پوښتنې ځوابول

17:45 — 16:00 ...... تفریح او استراحت

17:45 ........ دکنفرانس موضوع لوستل

21:00 — 19:30 ...... عربي ترجمه

کوم کارونه موچې سرته ورسول خط پرې راکاږئ ځکه چې دا کار درته داخلي خوشحالي پیدا کوي. د ورځني پروګرام د وخت او پلان سره که سم کار وکړئ، نوتل به خوشحالي او آرام ژوند ولرئ.

## د کارکولو بنې لارې چارې

کله دې چې یو مهم کار په مخ کې وي ډیر ژر یې شروع کړه.

هیڅکله یې د نه کولو ټ فداري مه کوه، کله چې د یو نوي کار سره مخ شوئ کوښښ وکړئ چې عملي یې کړئ او که چیرې کافي وخت و نه لرئ نو په لنډ ډول یې د نظره تیرکړئ او پهٔ تلونکي وخت کښې یې دعملي کولو لپاره یې یادداشت واخلئ.

هیڅکله د کارکولو په وخت کې منفي فکرونه مه کوئ، که کارمو دیر

هم وي خو په خوشحالۍ سره پرې سمدلاسه شروع وکړئ او که امکان ولري مه يې ځنډوئ.

څوک چې د منفي فکرونو مخه نيسي او د کارکولو مثبته فضا ځانته جوړوي کيداى شي چې د يرښ يات کار وکړي.

کوښښ وکړئ چې د کارکولو په وخت کې هيجاني او احساساتي نشئ او باحوصله او بردبار اوسئ.

مشکلات د دې د پاره دي چې بايد حل شي نو ځکه د حلولو د پاره يې خوشبين اوسئ او ژر يې شروع کړئ. بايد قبول کړئ چې په هر کار کې مشکلات شته، هيڅ داسې کار نشته چې مشکل پکې نه وي. د هر مشکل رفع کول قوي اراده غواړي. (که غرجګ دى په سر يې لار ده).

مرد بايد که پراسان نشود مشکلى نيست که اسان نشود

هغه څوک چې ستاسو د مشکل په حلولو پوهيږي ورسره مشوره وکړئ.

تل د ځان لپاره د نيکبختۍ، روغتيا، برياليتوب او نورښه فکرونه او د هغو غوښتنه او هيله کوئ ځکه چې دا د ول فکرونه سړي ته د هغو د لاس ته راوړو لپاره عمل کولو ته هڅوي.

حتمي هدف ته هغه څوک رسيږي چې هميشه په کلکه اراده په لټه او کوښښ کې وي.

د ژوندي متحرک فکر او کلکې ارادې خاوند د لوى خداى (ج)، په مرسته حتمي هدف ته رسيدلى شي، د ټولو بحثو، منفي نظرياتو او فکرونو

مخه باید د کارکولو په وخت کې و نیول شي. د غلطئ کولو په صورت کې په حنپل ځان انتقاد وکړئ. د کارکولو په وخت کې باید د ډیر احتیاط، آرام او واضح فکرکولو څخه کار واخلئ.

## هدف او هدف ته د رسیدلو وسیله کې فکرکول :

هرسړی یو یاځو شیان دځان لپاره هدف ټاکلی شي.

هدف یو قوي محرک دی، انسان د یته اړکوي چې اړومرو باید مورد نظرهدف لاس ته راوړي.

## هدف ټاکل

مثلاً بریالیتوب په ټولګي کې د خپلو مضرو خواصو او عاداتو دمنځه وړل، ښه خواص او عادات په ځان کې پیداکول.

بې هدفه ژوند هغې کشتئ ته ورته دی چې په یو لوی بحرکې ئې د سفرکولو هدف مشخص نه وي.

## لرې هدفونه

مثلاً په ټولګي کې په ښه درجه بریالي توب، خوش طبعي په ژوند کې اختیارول، په کورکې ښه ګذاره کول، پوهه حاصلول او داسې نور، هم دارنګه د آخرت لپاره نیک اعمال لرې هدفونه بلل کیږي.

## هدف ته د رسیدلو وسیلې

د دې د پاره چې هدف ته و رسیږم نو په څه ډول او په کومه برخه باید زیات کار وکړم ؟ زما کوم عادات او خواص هدف ته د رسیدو

تاسوته دعلم څخه مګر لږ.

د روحیاتو علم په مختلفو وختونوکښې د روحیاتو د پوهانو له خوا په مختلف ډول تعریف شوې دې چې اوسنی تعریف ئې دادی:

**د روحیاتو ( روانشناسی ) تعریف:** روانشناسي د یو سلسله انساني تجربو څخه عبارت دی چې د انسان د شعوري، غیرشعوري حرکاتو، سکناتو، روش او سلوک څخه بحث کوي کوم چې د ده د مغزو محصول دي. په لنډ ډول ویلای شو چې د انسان داجتماعي کړو وړو مطالعې ته د روحیاتو علم وائي.

**د روحیاتو دعلم څانګې:** روحیات ډېرې څانګې لري چې دلته یوازې د ماشوم په روحیاتو او تعلیمي چارو پر روانشناسی بحث کېږي.

اول: د ماشوم روحیات ( Child Psychology ): د ماشوم د زېږېدو د مخه اووروسته عوامل کوم چې د ماشوم پر ذهني او جسمي وده باندې تاثیر څرګندوي.

مثلاً: د ماشوم ذهني او جسماني وده او نمو څرنګه په سه ډول کېدای شي؟

همدارنګه د ماشوم ذهنی انکشاف او دلچسپي د مختلفو شیانو سره په مختلفو وختونو کښې تر څېړنې لاندې نیسي.



مانع گرځي ؟ په کومو نقطو کې ضعیف یم ؟ اول کومه برخه د کار اجراء کړم ؟ دخلکو سره څرنګه چلند او کړنه اختیار کړم ؟ څوک مې حمایه کوي ؟

بې له مهمو عواملوڅخه هیڅکله خپل هدف دلاسه ورنکړئ ځکه چې د هدف څخه صرف نظر کېدل بې اعتمادي په ځان کې پیداکوي .

## یو مشکل څنګه حلوئ ؟

خپل مشکل په څو برخو وویشئ او په لاندې ډول یې عملي کړئ:

۱- خپل مسایل دوه ځلې ولولئ .

۲- کوم مشکلات چې تاسو یې پېژنئ دکوم یوه سره ستاسو فعلي مشکل نژدې دی ؟

۳- څه شی لرئ او څه شی لټوئ ؟

۴- دکاغذ پرمخ یې په لنډ ډول ولیکئ .

۵- رابطه په منځ د هغه شي کې چې لرئ اولټوئ یې .

۶- کومې برخې د مسئلې بایداول حل شي ؟

۷- په کومو وسایلو سره باید حل شي ؟

۸- دکار پلان جوړکړئ اوقدم پر قدم وړاندې ولاړشئ .

۹- ځان همیشه متمرکز کړئ او په خپل مشکل باندې کار وکړئ .

۱۰- قدم په قدم هدف ته د رسیدو په خاطر وسیلې ، امکانات او لارې ولټوئ .

۱۱- دکار په پای کې د مسئلې حل د هغه لیکنې سره مقایسه کړئ .

کومه چې د کار په شروع کې مو په لنډ ډول د کاغذ پرمخ لیکلې وه او په واضح او بشپړه توګه سره د مسئلې حل ولیکئ.

## دا زموینې لپاره تیاری نیول

په ځنې وخت سره شروع وکړئ، د ټول درس د تکرار لپاره تقسیم اوقات جوړ کړئ. تقسیم اوقات باید داسې جوړ شي چې د امتحان څخه دوه یا درې هفتې د مخه ټول مضامین او درس تکرار شي. که چیرې د تکرارولو په وخت کې بل کوم درسي مشکل یا ناڅاپي مسایلو سره مخ شئ نو د دی د حل لپاره د ازموینې ترمخه یوه هفته خالي پریږدئ او په هغې کې ځنې مشکلات حل کړئ. که چیرې مشکل ونلرئ نو استراحت پکې کولی شئ.

څو کرتې د درس پر موضوع کار وکړئ، تمرین یې کړئ او یو تربله پوښتنې وکړئ.

مخکې د ازموینې څخه لاندې پوښتنې د ځان څخه کولی شئ:

څرنګه پوښتنې به په ازموینه کې راځي؟ (ډیرې عمیقې، ټول جزئیات یې، د ښوونکي په عاداتو او خواصو ځان پوه کړئ)، ښوونکی په کومو نقطو ډیر زور اچوي؟ په کومو برخو یې ښه پوهیږم؟ او په کومو برخو یې نه پوهیږم؟ څوک او په کوم ځای کې به را سره مرسته وکړي؟ د ځنې ځان څخه د امتحان د پوښتنو غوندې تیپوسونه وکړئ. په خلاصه ډول ټول شیان په یوه کتابچه کې ولیکئ ترڅو چې له نظر پرې وکړی شئ.

د مفرداتو لپاره فهرست جوړ کړئ، ټول درس په څو

برخو و ويشئ او هره يوه برخه ئې بيا بيا تکرار کړئ.

دا زمويني تر شروع د مخه شيبو کې درس مه لولئ ځکه چې ستړې، سربداله، وارخطاء او خواشيني کيږئ، او ياد شوي شيان موهم له ياده وځي.

دا زمويني تر شروع دمخه بايد استراحت او آرام وکړئ، ډيرې هلې ځلې دازمويني په شپه مه کوئ ځکه چې خه کټه نه لري.

تر ازمويني دمخه د ځان سره ووايئ چې آرام يم او په ازموينه کې انشاء الله بريالی کيږم.

هميشه لپاره دازمويني دمخه ځان خوشحاله او وينس وساتئ (دخپل عقل څخه کار واخلئ).

دخپل ځوندکولو طرز او طريقه دازمويني په وخت کې ثابته وساتئ. پاکې جامې اغوندئ او پلي چکر ووهئ.

دازمويني په وخت کې ځان همغسې سنگاره کوئ لکه څنگه چې عادي ژوند کوئ.



# کامیابي اوناکامي

کامیابي، ناکامي او ټول شیان د الله جل جلاله په قدرت کښې دي لکه چې خدای جل جلاله فرمائي:

عزت ورکوي خدای جل جلاله هغه چاته چې اراده ئې وشي او ذلت ورکوي هغه چاته چې اراده ئې وشي.

د نیا وي اسباب یوازې ظاهري بڼه لري چې په لاندې ډول ئې د نمونې په ډول لنډه یادونه کوو.

**د کامیابۍ او ناکامۍ ظاهري عوامل:** تدریسي مواد، ذکاوت، صبر، زیار ګالل، عادات، خواص او داسې نور شیان د انسان په کامیابۍ او ناکامۍ کښې مهم رول لوبوي. قدرتي خبره ده چې ذکي زده کوونکي چې د صبر، حوصلې او نورو ښو عاداتو او خواصو او تدریسي موادو څښتن وي خدای جل جلاله ئې بریالی کوي. د درس یا دولو سمه طریقه د نورو خلکو په مقابل کښې ښه سلوک د خپل استعداد او امکاناتو څخه په کافي او بشپړه توګه کار اخستل هم په بریالیتوب کښې مهم رول لوبوي.

کله کله ناکامي هم د بریالیتوب یو شرط ګڼل کېدای شي ځکه کله چې په یو کار کښې سړې ناکام شي او دلاسه ئې ونه شي او نا امیده نه شي نو وروسته له هغې ویښ شي، ځان ته تکان ورکوي او فعاله کار شروع کوي او خپلو نواقصو ته متوجه کېږي.

**د کامیابۍ تاثیرات:** زده کوونکي د درس ویلو څخه خوند اخلي یا استراحت طلبه کېږي کله چې کامیاب شوئ نو آرام مه

کسبېږئ بلکه کوښښ وکړئ چي نور نوی شیان زده کړئ ، دقاطع تصمیم خاوندان اوسئ او د نورو همزولو په کامیابه کښې هم مرسته وکړئ د کوښښ په نتیجه کښې سړی په ډېرو شیانو بریالی کېږي مګر په ټولو شیانو بریالیتوب کوم امکان نه لري.

## کومه کامیابي باید په ژوندکي وغواړو؟

طبیعي ده چي هغه کامیابي به غواړو چي په هغې کښې زمونږ د آخرت له پاره خیر وي او په دنیا کښې د ځان او نورو انسانانو له پاره په کښې ګټه وي. د ځان او ټولنې نېکمرغي د پیغمبر صلی الله علیه وسلم طریقې او د خدای جل جلاله رضا په هر هدف او کار کښې باید په نظر کښې وي.

## کومه وسیله باید د کامیابۍ د پاره استعمال نه شي؟

هغه وسیله چي زمونږ ضمیر او وجدان يې نه قبلوي باید د کامیابۍ له پاره استعمال نه کړو ، هغه وسیله چي پر هغې خدای جل جلاله او زمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم له مونږ څخه ناراضه کېږي باید د دنیا د بریالیتوب د پاره استعمال نه کړو . په ژوند کښې لویه کامیابي داده چي سړی د خپلو مشکلاتو څخه په خپله د خدای جل جلاله د احکامو مطابق د خلاصون او حل لار پیدا کړي او خپل وجدان ته په کښې ملامت نه وي.



# د کاربریالۍ طریقې

د دې کار د پاره چې یو کار په بریالی ډول پای ته ورسوئ نو دلاندې طریقو څخه کار واخلئ:

۱- د کار په شروع کښې بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ﷺ و وایاست.

۲- د کار په وخت کښې چې کوم مشکلات پیدا کېږي هغه باید مخکې ترمخکې تخمین کړئ او حلولو ته ئې د پلان له مخې اقدام وکړئ.

۳- یوه دیاداشت کتابچه دځان سره ولرئ ترڅو نا څاپي کټورې مفکورې او نظرې چې په ذهن کښې مو پیدا کېږي په کښې ولیکئ د دې د پاره چې د کار تول جزیات در څخه هیر نه شي نو ځکه ئې د یاداشت په کتابچه کښې ولیکئ.

۴- ماښام د (۳) دقیقو له پاره په تېرې شوې ورځې نظر واچوئ، د دې د پاره چې ستاسې حافظه د تکرار سره اشنا او عادت شي.

۵- ستاسو د احساساتو ګراف په هفته کښې کله جګېږي او کله ټیټېږې هره دفعه چې د احساساتو ګراف مو ټیټېږي سببونه ئې وڅېړئ.

۶- د پلان یوه کتابچه ولرئ او په دغه کتابچه کښې خپل نژدې او لرې هدفونه، خپل ورځني کارونه، خواص او عادات ولیکئ.

۷- په منفي نظریاتو او فکرونو کلکه او سخته پابندي ولګوئ او پرې ئې نه ږدئ چې په دماغ کښې مو چکر ووهي.

۸- په خپل ځان امر کوئ، مثلاً: مشران دې ترسهار دلمانځه تراد اکولو وروسته داسې ووائې چې دلوئ خدای جل جلاله په مرسته

به نن دا ....... کارونه کوم . ما سختن تر بیدیدو د مخه دځان سره تصمیم نیول چې سبا به سهار وختي پاڅېږم او برستن به راڅخه لکه بنکه غوندی الوزي.

۹- دځان سره د نیم ساعت د پاره د قرآن عظیم الشان تلاوت اویا په چپه خوله د سهار او ماسختن په وخت د الله جل جلاله ذکر کول. همدارنګه د نور و تسکیني الفاظو په تکرارولو سره هم دزړه اطمنان حاصلېږي.

۱۰- خپل وخت عبث مه تېروئ او ګټه تري واخلئ.

۱۱- د اسلام پر اصولي عاداتو او اخلاقو ځان عادت کړئ.

۱۲- د دې د پاره چې د زده کړې په وخت کښې خستګي د بېره ژر دځان څخه لرې کړی شئ نو داسې مثبتې جملې و وایاست: زه تراوتازه یم او د کار کولو انرژي لرم انشآء الله زه بریالی کېږم.

۱۳- یو کار چې شروع کړئ پای ته ئې ورسوئ، په نیمايئ کښې ئې پرېښودل د شیطان وسوسه ده. وعده موچې وکړه تر سره ئې کړئ ځکه چې دا دخدای جل جلاله امر دی او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم کړنلاره او د انسان له پاره دکامیابۍ او خوشحالۍ طریقه ده.

۱۴- کوم کار چې نن کولی شئ سبا ته ئې مه پرېږدئ ځکه: چې د نن کار و سبا ته معطل کړئ - اعتبار به په سبا کوئ ترکومه.

۱۵- دصلحې او امنیت محیط د انسانانو استعداد ته انکشاف ورکوي. خدای جل جلاله فرمائي: « صلحه نیکي ده یعني ستاسو په صلحه کښې خیر دی»

په جنګ کښې ملک نه ابادېږي بلکه ورانېږي. جنګ ته باید ترهغه وخته پورې مسلمانان دوام ورکړي ترڅوچې ظالم دالله جلّ له امرته غاړه کېږدي اوفسا دتری تم شي.

۱۶ نظم دکاغذونو، کتابونو، کتابچو، اوداسې نورو شیانو هم استعداد ته انکشاف ورکوي.

۱۷- دکار په ځای کښې ستاسې ټول شیان باید داسې ترتیب شوي وي چې په هره دقیقه کښې يې پیدا کړئ.

۱۸- یوه تخته دکارکو لوځای یا بسترې ته نږدې نصب کړئ چې ضروري یا داشتونه پرې نصب کړئ.

۱۹- زیات وخت مو سپما کېږي اوپه اسانۍ سره بریالي کېږئ که چېرې درس بنه، عمیق، مسلسل اوهره ورځ تعقیب کړئ.

۲۰- که پر یوه شي پوه نه شوئ دښوونکي څخه يې پوښتنه وکړئ، که څه هم نور همزولي دې کم عقل وبولي.

۲۱- کورنۍ وظیفې په خپله یا د نورو ملګرو په مرسته اوکومک سره حل کړئ اوځان پرې پوه کړئ مګر هیڅکله يې نقل نه کړئ.

۲۲- حق الزحمه يې درس باید دښوونکي یا بل تجربه کار عالم سره ووایئ.

۲۳- ځنې خاصې طریقې شته چې د خدای جل جلاله په کومک سرې دآرام وجود اوروغتیا خښتن کېږي مثلاً: په آرام سره اوږده ساه ایستل د کار له پاره سړی متمرکز کوی اوروغتیا ته يې هم کمته

رسوي. همدارنګه يوه لنډه جمله تاکل اوهغه دماخستن تر لمانځه وروسته د نيم ساعت له پاره په کتب اوبستره باندی دځان سره ويل روحي تسکين پيدا کوي.

## يو سمينار څه ډول ترتيبوئ؟

دخپلو ښوانيو غلطيو او دهمصنفيانو د سيمنار ورکولو څخه دې بايد ډېر ښيان يا دکړي وي. مثلاً : خپل اواز ، موقف اوټول حرکات، سنجول اوکنترول اوهم ټول ضروريات ورته برابرول.

## داخبار او ورځپاڼې له پاره ديومضمون دليکلو طريقه

دمضمون جملې بايد ډېرې لنډی او واضح وي ، علمي اومهمو نقطو ته په کښې ځای ورکول شوي وي ، په اسانه سره بايد پرې خلک پوه شي، دلچسپې وي او زړه راښکونکی عنوان ولري.

### په پای کښې وايم چې :

ژوند دهغه چا له پاره مشکل نه دی بلکه اسانه دی څوک چې فعاله قدم په قدم وړاندی ځي.

* * *

په جهان د ننګياليو دی دا دوه کاره
يا به وخوري ککرئ يا به کامران شي.

# Literature (مؤخذونه)

Holy Quran and Hadieth.

Planen und Durchführen von Unterricht, Verlag Herder Freiburg 1979.

Francoise Dolto: Die ersten fünf Jahre Alltagsproblemen mit Kindern.
Beltz Verlag. Weinheim und Basel.

Thomas Gordon: Lehrer, Schüler Konferenz. Wie man Konflikte in der Schule löst.
Verlag Rowohlt Taschenbuch GmbH.

Lutz Schwäbisch, Martin Siems: Anleitung zum sozialen Lehrnen für Paare, Gruppen und Erzieher.
Rowohlt Taschenbuch Verlag 1974

Sayed Manzar Psychology. T.T.C SOS/PG Belgium.

Dr. Theo Locher. Brüg b. Biel Swiss.

Murabi. Kiest? Who is teacher? printed by «Sepahi pasdarani Ingelabi Islami» in Tehran-Iran.

# دماشوم روحيات (Child Psychology)

دماشوم روحيات دماشوم دلومړنيوکلونو د ژوند څخه بحث کوي چې په لاندې ډول تشريح کېږي:

## د ماشوم ځنې خواص او عادات:

دماشوم د روحياتو د لوستو څخه هدف دا دی چې د ماشوم په مشکلاتو مور او پلار او ښوونکي خبر شي او د حل لارې پيدا کړي ځکه چې کورنۍ دماشومانو د روزنې لومړی مدرسه ده او مور او پلار يې لومړي ښوونکي دي څرنګه چې اکثره کورنۍ دخپل اولاد په صحيح تربيه نه پوهېږي نو ځکه د ښوونکي تر ټولو ستره وظيفه دا ده چې دماشومانو ستونزې او مشکلات تشخيص کړي او دهغو په حل لو کښې د تعليم او تربيې داصولو مطابق ورسره مرسته وکړي.

## دماشومانو زېږېدل:

دماشوم زېږېدنه د مور و پلار او د کورنۍ دخوشحالۍ سبب کرځي مګر دماشوم سره پوهېدل او تربيه يې اسانه کار نه دی. دماشوم دژوند په اولو وختو کښې مور او پلار د لاندېنيو مشکلاتو سره مخامخ کېدای شي.

مور او پلار آرزو درلوده چې زوی وشي مګر لور يې وزېږوله يا برعکس نو ځکه مور او پلار يې پرې خواشيني او ستومانه دي. د دې ماشوم سره مور او پلار دومره علاقه او مينه نه ښکاره کوي دا کار مه کوئ ځکه چې د يوې خوا د خدای جل جلاله دخلقت او ارادې پرضد واقع کېږي

| عنوان | مخ |
| --- | --- |
| **دریم فصل دوهمه برخه** | |

| عنوان | مخ |
|---|---|

# بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# سريزه

دخدای جلّ جلاله شکر اداء کوم چي ما ته يې د دې قدرت راکړچې دافغانانو دښوونې اوروزنې لارښوددلو مړي ځل له پاره ليکم.

دداسې يو کتاب دليکلوله پاره ډېر ضرورت وو، داځکه چې دښوونې اوروزنې فني او مسلکي غړي يو زيات تعداد بنديان او شهيدان شول، ځينې نورېې د مجاهدينو او مهاجرينو په کارونو اوچها دمصروف دي اويو شمېر نورېې اروپا، امريکا او منځني ختيځ ته ولاړل.

دپوهنې چارې دمهاجرينو په کمپونو او د افغانستان په آزادوسيمو کښې غير فني اوغير مسلکي اشخاصوته سپارل شوي دي. دا ډول نور ډېر سببونه وو چې د ډېر وخت راهيسې يې زما پر ذهن منګولې ښخې کړې وې چې دافغانانو له پاره دښوونې او روزنې لارښود و ليکم.

په دغه کتاب کښې د ماشومانو ژوند، وده، محيطي شرايط .... او د هغوئ ورځنی ستونزې يوه اندازه بيان شوي دي.

داسلام د سپېڅلي دين اودعصري تعليم او تربيې له مخې دماشومانو ژوند په کښې ځای پرځای څېړل شوی دی.

بر سېره پردې د ښوونکو او زده کوونکو تر منځ روابط، د درس ورکولو ميتود او د دوی د ستونزو د حللو په برخه کښې بحث او

څېړنه شروع شوې ده.

د زده کړې مهم اساسي اصول، طريقې، هدفونه او د زده کړې د استعمال ځايونه هم د اسلام د نظره او هم د عصري تعليم او تربيې په لحاظ پکښې څېړل شوي دي.

زده کوونکي د الله جل جلاله توحيد او د اسلامي احکامو منلو ته ځای پر ځای هڅول شوي دي.

څکه نو دغه کتاب د راتلونکی ځوان نسل د ښوونې او روزنې له پاره نېکمرغي، د پوهنې غير فني او غير مسلکي کسانو، د ماشومانو د مور او پلار او د نورو ټولو کسبونو د خاوندانو له پاره دو دانۍ د ښېګڼې ډېره بولم. د دې کتاب څخه ښوونکي په تدريسي چارو، مور او پلار د خپل ماشوم په روزلو او دفتري کارکوونکي ترې د دفتري کارونو په سمون کښې کار اخستلای شي.

په ډاګه وايم چې زه خو نه ليکوال يم او نه د اجتماعي علومو ماهر، صرف د تېرو لسو کلونو د مهاجرت په دوره کښې د افغاني ماشومانو په تعليم او تربيه بوخت يم نو کېدای شي چې په دې کتاب کښې ډېرې غلطۍ او سهوې موجودې وي، له دې کبله له ګرانو لوستونکو څخه هيله کېږي چې د خپلو اصلاحي نظرياتو په رالېږلو سره د دې کتاب په بشپړولو کښې له ما سره مرسته وکړي.




# د ښوونې او روزنې لارښود

## لومړۍ برخه

د جوزا میاشت ۱۳۶۸ هـ ش کال

**مؤلف:** استاد باطن شاه (صافی).

**همکار:** روژه گل (وحدتي).

**مشاورین:** مدیر نورگل خان ، معلم عبدالمعبود.

**خطاطان:** محمدصادق "زهیر" ، غلام لطیف.

# دموضوعاتوفهرست

| عنوان | مخ |
|---|---|

## لومړی فصل

| عنوان | مخ |
|---|---|



## دوهم فصل تعلیمي روحیات

### لومړۍ برخه

